# قدورِی رحمہ اللہ

## پښتو

جلد ۲ حصّه ۳


مصنف مولانا محمد عُبید اللّٰہ الایوبی
القندهاری السُّلیمانخیلی الحنفی


﴿نظرثانی﴾
مولانا نثار احمد عریف

ترتیب وسرورق
فضلُ الحق حقّانی
فاضل وفاق المدارس ملتان


مکتبۃُ القراۃِ والتجوید
کانسی روڈ، شالدرہ، کوئٹہ

فانکحوا ما طاب لکم من النساء مثنی وثلث وربع (القرآن)

# نكاح قدوري




تصنيف

مولانا الحاج علامه

## محمد عبيد الله

الايوبي القندهاري السليمانخيلي الحنفي







مكتبة القراءة والتجويد كوئته

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم ........ نکاح قدوري پښتو جلد ۳ حصه ۲
د مصنف نوم ........ الحاج علامة الزمان محمد عبيد الله الايوبي القندهاري مدظله العالي
کمپوزر ........ حبيب الحق حقاني
خپرونکې اداره ........ مکتبة القراءت والتجويد کاسي روډ شالدره کوټه
کچه ........ ۲۰\۳۰\۸
د سرورق ليکونکی ........ محمد فضل الحق حقاني

## خبرتیا

د نکاح قدوري د دوهم جلد دريمه حصه به هم د همدې مکتبې له خوا څخه په ښه خط، ښه کاغذ، او ښه چاپ سره ومينه والو ته ډېر ژر وړاندې سي.

د هم دې مکتبې له خوا تعليم الاسلام په خوړه کندهاری پښتو چاپ ته وسپارل سو، مينه وال دې له نژې کتاب پلورنځی څخه ژر تر لاسه کړي

# ﴿كتاب الجنايات﴾

دا كتاب دي په بيان كي د احكامو د جناياتو .

**پخوا نسبه**:- چي اګرچه كتاب الاعتاق او د عتق احكام ته په او سني زمانه كي چندان ضرورت نسته لعدم العبيد والاما فی عموم الدول الاسلاميه، نوځكه دروېش په قدر د مايحتاج اليه حل لعبارت اكتفاء وكړه او د ډېر تفصيل څخه يې ډډه وكړه، بخلاف الجنايات ولي جنايتونه لكه قتل، د چا پر اندامو تېرى، غلا وغيره په نننۍ زمانه كي خصوصا ډېر رواج دي، نو د احكامو پېژندل يې ډېر ضروري دي لهذا دروېش به په تفصيل كي د احكامو د جناياتو حسب المقدور بقدر كفايت د مفتدي تفصيل وكړي انشاء الله تعالى ﷻ

**پخوا نسبه**:- چي جنايات په حقيقت كي ضد د اعتاق دي ولي په جنايت كي اهلاك د نفس او يا د مال او يا د اطرافو دي، او اعتاق احياء معنوي د مريي ده نو په سبب د تقابل مصنف رح دا دوه بابه سره متصل كړه او په سبب د شرف د احياء يې كتاب العتاق د مخه كي، لان التقابل عد فی علم البيان من وجوه المناسبة كما لا يخفی علی من نظر فيه" او بل مناسبت ددې دوو كتابو دادي چي اغلظ د جناياتو قتل النفس بغير حقه چي حكم يې قصاص دي او قصاص كه څه هم ظاهرا موت د مقتول قصاصا دي لكن په دې قصاص كي حيات عظمی سته كما فصله المفسرون" قال الله عزوجل ولكم فی القصاص حيوة يا اولی الالباب" او

په اعتاق کي هم احياء وه کما عرفت فبينهما تناسب معنوى ايضا فلهذا اتصل المصنف بينهما.

**فائده**:- جنايت په لغت کي مصدر دي او په لغت بيرته نقل سو وه هغه کار ته چي سړی يې وکړي د فعل څخه د شر فسمی ذالک الفعل باسم المصدر وهو شائع فی اللغة العربية، او په شرعه شريفه کي هغه فعل ته واى چي شرعا حرام وي (بحر الرائق، مجمع الانهر، درويش)

**فائده**:- جمع د لفظ د جناياتو په اعتبار د تعدد د انواعو د جنايت ده لکه قتل النفس، او قطع الاطراف وسرقة المال وغيره وهذا على محاذات ما قال المصنف کتاب الطهارات.

قال القدورى رحمه الله ﴿القتل على خمسة اوجه، عمد، وشبه عمد، وخطاء، وما اجرى مجرى الخطاء والقتل بسببه﴾

او قتل پر پنځه قسمه دي (۱) يو عمد (۲) بل مشابه د عمد (۳) بل خطاء (۴) بل جارى پرځاى د خطاء (۵) او بل قتل په سبب دي،

**پوه سه**:- چي امام محمد رح په مبسوط کي قتل درې قسمه بللي دي (۱) عمد (۲) شبه عمد (۳) او قتل خطاء لکن صاحب د جوهره وايي چي قدوري چي پنځه قسمه کړه د پاره د تفصيل د قسمينو اخرينو او د بنه بيان ددې دوو قسمو کي که څه هم دا دوه قسمه داخل دي په قتل خطاء کي فى الحقيقت

قال ﴿فالعمد ما تعمد ضربه بسلاح﴾ نو عمد هغه قتل دي چي په قصد سره وکړه وهل د مقتول په صلاح سره.

**پوه سه**:- چي قصد خوفعل د قلب دي او هغه پټ دي نو اعتبار آله لره د قتل ده، يعني که آله وژونکې آله وه نو هغه قتل عمد دي.

**فائده**:- سلاح هغه آله د قتل بولي چي د اوسپني څخه جوړه وي لکه توره، چاړه، خنجر، نېزه، توپك، توپنچه، کلاشنکوف وغيره من الآلة الجديدة المتخذة من الحديد.

قال ﴿او ما اجرى مجرى السلاح فى تفريق الاجزاء كالمحدد من الخشب والحجر والنار﴾ او يا هغه شی چي په ځای کي د سلاح وي يعني مشابه د سلاح سره وي په جلا کولو کي د اعضاؤ لکه تېره لرګي او يا تېره ډبره او يا اور.

**پوه سه**:- که يو سړي بل سړی و رود يا ولې ته ور واچاوه او هغه غرق سو او مړ سو په نېز د امام اعظم هغه قتل عمد نه دي نو قصاص نسته پکښي، بلکه ديت د مړي واجب دي پر عاقله د قاتل، او ياران وای که اوبه دومره اوبه وې چي خلاصېده د هغو څخه نه سوه کېدای غالبا لکه د هلمند رود مثلا هغه هم قتل عمد دي او حکم يې قصاص دي.

**مسئله**:- په قتل عمد کي دا شرط دي چي سبب د ضمان به وي، نو قتل د قطاع الطريق عمد نه دي او نه قتل د مرتد عمد دي او نه قتل د حربي عمد دي ولي دا قتلونه ضمان نه لري.

قال ﴿وموجب ذالك الماثم والقود الاان يعفو الاولياء﴾ او حکم د قتل عمد ګناه ده چي تو به غواړي، او بل قصاص دي د قاتل مګر هغه وخت که اولياؤ اواقرباؤ د مقتول عفو د قصاص وکړه که يې

مفته عفوه وکړه او يا يې ديت واخستي نو بيا قصاص نسته، د ګناه دليل يې هغه آيت دي" ومن قتل مؤمنا متعمدا فجزائه جهنم الآيه" او د قصاص دليل هغه آيت دي" كتب عليكم القصاص فى القتلى الآيه"

**پوره بسه**:- چي حكم د قتل عمد زموږ احنافو په نېز قصاص دي متعين البته كه اولياء د مقتول او قاتل پر ديت سره راضي سوه بيا قصاص ساقط دي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي قريبان د مقتول اختيار لري كه قصاص غواړي او كه ديت يعني كه څه هم قاتل وقصاص ته اماده وي خو بياهم كه اولياء د مقتول ديت غوښتي او لياء د قاتل به يې وركوي، او زموږ په نېز داسي نه ده بلكه قصاص حق متعين دي بېله رضاء د جانبينو ديت نسي غوښتاى.

قال ﴿ولا كفارة فيه﴾ او كفاره لكه بيان چي به يې راسي انشاء الله نسته په قتل عمد كي، او امام شافعي رحمه الله كفاره هم پر قاتل لازمه بولي، والدلائل للفريقين فى الكتب المطولة.

قال ﴿وشبه العمد عند ابى حنيفة رحمه الله ان يتعمد الضرب بما ليس بسلاح ولا ما اجرى مجراه﴾ او شبه عمد په نېز د امام اعظم رحمه الله دادي چي په قصد يې ووهي مقتول په داسي شي چي نه سلاح وي او نه مايجرى مجرى السلاح وي، وقد مر ذكرهما.

**درويش وايي**:- چي ودې قتل ته شبه عمد وايي ددې سببه چي دا قتل دوې شبهې لري يوه شبه يې د عمد ددې وجهې چي قاتل قصد و[illegible] وهغه فعل ته چي ده ته حرام وو يعني وهل دمسلمان بلا موجب او بل مشابهت د خطاء سره يې په اعتبار ددې چي آله يې د قتل نه ده

استعمال کړي، فکان ذالک الفعل خطاء باعتبار لآلة، او مشابه د عمد دي په اعتبار د قصد ګوا دده غرض ضرب وو تاديبا هغه اتفاقا قتل ځندي پيداسو، ودليل قول ابی حنيفة رحمه الله قوله عليه السلام الاان قتيل خطاء العمد قتيل السوط والعصاء وفيه مائة من الابل الحديث" او عليه السلام د يوې لکړي او بلي لکړي فرق نه دي کړي.

**پوښتنه**:- ولي دا قتل خطاء شبه العمد بولي او عمد شبه الخطاء يې نه بولي؟

**ځواب**:- معنا د عمد په دې قتل کي ضعيفه ده ولي چي آله يې د قتل عمد د پاره نه ده وضع او نه د قتل د پاره خلک دغه آله مستعملوي بلکه غالبه استعمال ددې آلې د پاره د تاديب دي.

قال ﴿وقالا رحمهما الله اذا ضربه بحجر عظيم او بخشبة عظيمة فهو عمد وشبه العمد ضربه بهما لا يقتل غالبا﴾ او ياران وايي که يو سړي مقتول وواهه په لوي ډبره او يا په لوي لرګي هغه هم عمد دي، اوشبه عمد يعني په نېز د يارانو وهل دي د مقتول په داسي شي چي په هغه سره غالبا قتل نه واقع کيږي.

**پوښتنه**:- چي مذهب ته د يارانو ائمه ثلاثه هم تللي دي، دوي وايي چي د لوي ډبري او يا ډانګ لوي لرګي فعل تر سيف تر عمل کم نه دي، فصار عمدا فيجب القصاص.

قال القدوری ﴿وموجب ذالک على القولين الماثم والکفارة ولا قود فيه﴾ او حکم د شبه العمد پر اختلاف د دوو قولو د امام اعظم رحمه الله او د يارانو، اول خو ګناه ده يعني په اخرت به جزاء مومي ولي ده

داسي کار وکړي چي وده ته شرعا حرام وو، او دوهم حکم يې کفاره ده ولي دا فعل دده خطاء دي ولي ګورو وآلې ته چي د قتل نه ده او قصاص نسته پکښي لعدم کونه عمدا حرفا.

قال ﴿وفيه دية مغلظة على العاقلة﴾ او په دې قتل کي ديت ستة لما مر من الحديث، او ديت يې هم سخت او هم پر عاقله دي يعني دده پر قريبانو.

فائده:- بيان د عاقلې به راسي انشاء الله او دا ديت به په درې کاله کي اداکېږي ولي چي حضرت عمر ﷛ داغسي حکم کړي دي، او په غير عقلي شيانو حکم د صحابي محمول پر سماع د آنحضرت ﷺ کما تقرر فی کتب اصول الفقه، هذا حاصل ما فی مجمع الانهر مع زياده.

قال القدوری ﴿والخطاء على وجهين خطاء فی القصد﴾ يعني د فاعل په قصد کي ﴿وهو ان يرمی شخصا يظنه صيدا فاذا هو ادمی و خطاء فی الفعل وهو ان يرمی غرضا فيصيب آدميا﴾ او خطا دوه قسمه ده يوه خطا ده په قصد کي د رامي، خطا په قصد کي د رامي داده چي ده يو سړی په قصده مړ کي دده ګمان دا وو چي دا ښکار دي او په واقع کي هغه سړی وي، نو دی په قصد کي خطاوتي چي ده خو د ښکار قصد کړی وو هغه سړی وو او دده په رمي مړسو او بله خطاء ده په فعل کي هغه داده چي رامي خو نوښان وشتي پر سړي ومښتي او هغه مړ سو نو دا فعل چي وشتل د نوښان وه خطاء سوه.

قال ﴿وموجب ذالک الکفارة والديته على العاقلة ولا مائثم فيه﴾ او حکم د خطايي قتل يعني په دواړو قسمو کي کفاره ده پر قاتل

باندي او ديت دي پر عاقله دده او ګناه نسته پکښي قال الله تبارك وتعالى فى حكم قتل الخطاء" (فتحرير رقبة ودية مسلمة الى اهله، الى اخير لآية)

**پوهنه**:- چي مراد د عدم اثم څخه ګنا د قتل ده يعني د قتل ګناه نسته باندي لكن نفس ګناه سته چي ولي ده په وخت كي د ويشتلو ښه غور نه كاوه.

**مسئله**:- كه سړي خپل قريب په قتل خطا سره مړ كي، د ميراث څخه د مقتول محرومه دي، ولي چي احتمال ددې سته چي ده دي په قصد سره ويشتلى وي او خطا يې محض بهانه وكړه.

**كليه**:- هرهغه قتل چي موجب يې قصاص وي او يا كفاره وي قاتل د مېراث څخه د مقتول محرومه كېږي كذا فى السراجى والجوهره.

قال **﴿وما يجرى مجرى الخطاء مثل النائم ينقلب على رجل فيقتله﴾** او هغه قتل چي جاري په ځاى كي د خطاء وي لكه يو بده سړى چي پر سړي ورواوړي يعني تر ځان يې لاندي كړي او مړ يې كړي.

**پوهنه**:- چي اكثر دغه قتل په ښځو كي پېښېږي چي كوچنى د شپې وژاړي دا يې راواخلي او په ځاى كي يې د ځان سره پرېباسي او تى په خوله كي وركړي يو ګړى وروسته دا بېده سي او پر كوچني راواوړي او كوچني مړسي، نو مصنف چي على رجل ويلي دى هغه يو شاز او نادر مثال دي.

قال القدوری ﴿فحکمه حکم الخطاء﴾ نو حکم ددغه حکم هم د خطاء دي يعني قصاص نسته او ديت لازم دي او قاتل د ميراثه څخه د مقتول محروم دي.

قال ﴿واما القتل بسبب کحافر البير وواضع الحجر فى غير ملکه﴾ او هر چي قتل دي په سبب د يو کار چي د سړي څخه صادر سوی وي لکه کينل د څا او يا ايښول د ډبري دواړه په غير کي د خپل ملك وي.

قال ﴿وموجبه اذا تلف به ادى الدية على العاقلة ولاکفارة عليه﴾ او حکم د قتل په سبب سره چي مړ سي په هغه سره انسان، ديت دي پر عاقله او کفاره سته پر ده، ديت پر عاقله خو په دې لازم دي چي دا قتل په حکم د خطاء دي، او کفاره چي پرده نسته ددې سببه چي لوېدل وخاته او يا پر ډبره غوځارېدل خو د حافر يا د واضع الحجر فعل نه دي بلکه فعل د مقتول دي.

مسئله:- که يو سړي څا په خپل ملك کي کښلي وو او يا يې ډبره په خپل ملك کي ايښېوه بيا ديت پر عاقله هم نسته، لان لکل واحد التصرف فى ملکه بماشاء فالتلف منسوب الى المقتول من کل وجه.

قال المولى القدورى ﴿والقصاص واجب بقتل کل محصون الدم على التابيد اذا قتل عمدا﴾ او قصاص واجب دي په وژلو سره د هر انسان چي وينه يې محفوظه وي په دې سره مرتد او حربي خارج سوه ولي چي د هغو وينه حفاظت شرعي نه لري، او حفاظت د

ويني به يې هم د همېشه لپاره وي په دې قيد سره يې هغه كافر وه يستى چي اسلامي مملكت ته په امان يعني پارسپوټ راغلي وي او يو مسلمان هغه مړ كي نو قصاص پر مسلمان نسته ولي چي د مستامن وينه محفوظه ابدا نه ده بلكه په قدر د وېزې د پار سپوټ، ولي دى خو اصلاً حربي دي.

**درويمه وايي**:- چي دا مسئله كه څه هم مصنف كليه راوړې ده مګر صبي او مجنون ځندي مستثنى دي ولي چي په كتابو كي د فقهاؤا داخبره بالاتفاق موجوده ده چي غير مكلف اهل د عقوباتو نه دي، او كوچني او لېوني لره عمد نسته او مصنف وويل، اذا قتل عمدا ولي كه قتل خطاوي د هغه حكم قصاص نه دي كما مر.

قال ﴿ويقتل الحر بالحر والحر بالعبد والمسلم بالذمى ولايقتل المسلم بالمستامن﴾ او وژل كيږي يعني قصاصېږي حر سړى په قتل سره د حر، او دا غه رنګه قصاصېږي حر سړى په وژلو سره د مريي او داغه رنګه قصاصېږي مسلمان په وژلو سره د اهل زمه يعني چي په اسلامي ملك كي يو كافر د همېشه لپاره اوسېږي، لقوله عليه السلام دمائهم كدامائنا واموالهم كاموالنا" او نه وژل كېږي مسلمان په قتل د مستامن يعني چي په پاسپورټ و اسلامي مملكت ته راغلي وي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي حر په مريي سره نه وژل كېږي لقوله تعالى" الحر بالحر العبد بالعبد" ولنا قوله تعالى ان النفس بالنفس" او دا آيت مطلق دي او دا قانون اصولي دي چي تخصيص په ذكر سره نفي د ماسوا نه كوي، او دا غه رنګه قصاص د احكامو څخه د انسانيت او د

حق الدم الابدی دي په دې کي د حر او د مريي فرق نسته بخلاف الحربی والمرتد والمستامن.

قال ﴿ويقتل الرجل بالمرئة والكبير بالصغير والصحيح بالاعمی والزمن﴾ او وژل کېږي يعني قصاصېږي نر پر ښځه چي عمدا يې قتل کړي، که يې خپل او که پردی وي او مشر سړی پر کشر او کوچني، او جوړ سړی پر ړانده او شل سړي.

**پوره بسه**:- چي ددې مسئلو دليل دادي چي په باره د قصاص کوم آيتونه او حديثونه راغلي دي ټوله عام دي، او بل دا چي که چېري په قصاص کي مساوات من كل الوجوه معتبر سي نو دروازه د قصاص به بنده سي او قتل وقتال به تر اندازه ډېر سي.

قال ﴿ولا يقتل الرجل بابنه﴾ او نه وژل کېږي پلار پر زوي باندي يعني په وژلو کي د زوي عمدا پلار نه قصاصېږي" لقوله عليه السلام لا يقاد والد بولده.

**فائده**:- زوي که پلار عمدا مړ کړي پر قصاصېږي فهو كالاجنبی.

﴿ولا بعبده ولا بمدبره ولا بمكاتبه ولا بعبد ولده﴾ او نه وژل کېږي سړی په وژلو سره د مريي خپل، او نه هم په مدبر خپل، او نه هم وژل کېږي په وژلو سره د مکاتب خپل، او نه هم په مريي د زوي خپل، ددی ټولو مسئلو دليل دا دي چي مريي او مکاتب او مدبر خو مال د مولی دي، او څوک چي خپل مال تلف کي نو څه زمان پر سته؟ او بله خبره داده چي ټوله حقوق د مريي او معاملاتي د هغه راجع ومولی ته دي نو قصاص د مريي هم حق د مولی دي نو آيا دا معقوله خبره ده چي سړی

پر خپل ځان حکم د قصاص جاري کوي، او هر چي مريي د زوي دي چي پلار يې مړ کړي قصاص باندي نسته د هغه حديث په اثر چي" انت ومالك لابيك" نو دغه عبد الابن ګويا مريي د پلار دي نو په قصاص کي شبهه پيدا سوه.

﴿ومن ورث قصاصا على ابيه سقط﴾ که چا ته په ميراث ورسېدی قصاص پر خپل پلار نو قصاص ساقط دي سورت د مسئلې دادي که يو سړي مور د خپل زوي مړه کړه نو خو ميراث د قصاص يې زوي ته رسېږي، نو په عزت د پلار ګلوي هغه قصاص د پلار څخه ساقط دي کذا فی الکفايه.

﴿ولا يستو فی القصاص الا بالسيف﴾ او نه دي اخسته کېږي قصاص مګر په توره سره يعني هغه مقتول که په توره وژلی وي، او که يې په کلاشنکوف وژلی وي، او که يې په اور کي اچولی وي وغير ذالك کمامر، خو د قاتل سر يې په توره جلاکېږي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي په هر شي چي يې مقتول وژلی وو په هغه شي به قاتل وژل کېږي، او موږ وايو چي په حديث شريف کي دا سي ارشاد دي" لا قود الا بالسيف، جوهره.

قال ﴿واذا قتل المكاتب عمدا وليس له الوارث الا المولى فله القصاص ان لم يترک وفاء وان ترک وفاء ووارثه غير المولى فلا قصاص لهم وان اجتمعوا مع المولى﴾ او که چېري ووژل سو مکاتب مريي د يو چا په قصد سره او نه وو مکاتب وارث بېله باداره، نوقصاص اخيستل حق د بادار دي که نه وه پرې ايښي مکاتب

وفا يعني مال چي بدل الكتابت دي او كه يې وفا پرې ايښې وه او وارث د مكاتب غير د مولى هم وو نو حق د ميراث ورثه وو لره نسته كه څه هم دوي اتفاق وكي سره د مولى.

**تروېښي وايي**:- چي عبارت د مصنف مجمل دي صاحب د جوهره يې داسي تفصيل كړي دي چي وژل د مكاتب عمدا درې قسمه دي (۱) اول چي وفا د كتابت يې نه وي پرې ايښې نو حق د قصاص مولى لره دي كه څه هم نور ورثه لري په اتفاق سره د امامانو رحمهم الله ولي مكاتب چي مړ سو ملك د مولى وو نو حق د استيفاء د قصاص هم ده لره دي، او د مخه تېره سوه چي حر پر عبد وژل كېږي، او (۲) دوهم صورت دادي چي وفا خو يې پرې ايښې وي او په عين حال كي ورثه غير د مولى څخه هم درلوده نو په دې صورت قصاص اجماعا نسته ولي چي تېپي كول د مكاتب په داسي حال كي وسوه چي مستحق د قصاص يې مولى وو لبقاء الرق، او موت دده په داسي وخت كي ميانځ ته راغلي چي مستحق د قصاص يې ورثه وو، لزوال الرق عنه بسبب الوفاء" نو اختلاف د مستحق د قصاص شبه ده په سقوط كي د قصاص وهذا ماقاله المصنف وان ترك وفاه الخ.

او (۳) دريم صورت يې دا دي چي وفا خو يې پري ايښې وي مګر بل وارث بېله مولى نه لري نو په نېز د امام اعظم رحمه الله او په نېز د امام ابو يوسف رحمه الله حق د قصاص مولى لره دي، وهذا معنى قول المصنف وليس له الوارث آه، امام محمد رحمه الله وايي چي مولى يې نه سي قصاص ولاى، چي مولى چي مستحق د قصاص وو په وخت كي د تېپي كېدو د مريي په سبب د ملك وو، او په وخت كي د مرګ په سبب د ولاء العتاقه

دي مستحق د قصاص دي، نو جهتونه د استحقاق چي مختلف سوله نو ګويا مستحق مختلف سو لکه په دوهم صورت كي، او شيخان رحمهما الله چي مستحق د قصاص خو په هر صورت كي مولی دي، فوجب له القصاص، انتها مع زيادة كثيرة من العبد العاصی.

قال ﴿واذا قتل عبد الرهن لايجب القصاص حتى يجمع الراهن والمرتهن﴾ او كه ووژل سو هغه مريي چي يو سړي په پور كي بل سړي ته په ګرو ورکړي وو نو قصاص د مريي نسته تر هغو چي راهن يعني مالك د مريي او مرتهن چي پور والا دي سره جمع نسي او اتفاق سره ونه كي پر قصاص، ددې مسئلې دليل دادي كه راهن يعني مالك د مريي پر خپل سر قصاص واخلي نو حق د مرتهن په پور كي باطلېږي او مرتهن په دې سبب قصاص يوازي نه سي اخستلای چي مريي خو دده ملك نه دي او چي دواړه جمع سي نو د مرتهن حق به په رضا دده باطل سي.

قال ﴿ومن جرح رجل عمدا فلم يزل صاحب فراش حی مات فعليه القصاص﴾ او كه چا ټپي كي يو سړی يعني په توره وغيره يې وواهه په قصد سره نو هغه مجروح د هغه ټپ د سببه پر خای پروت وو يعني ټپ يې نه سو جوړ حتی چي مړ سو، نو پر جارح باندي قصاص سته، لان الموت وقع بسبب جرحه.

قال ﴿ومن قطع يد رجل عمدا من المفصل قطعت يده، وكذالك الرجل ومارن الانف والاذن﴾ او كه چا پرې كي لاس د يو چا

پر بند باندي هر بند چي وي، نو د هغه سړي لاس دي هم پر هغه بند وربرې کړه سي،

**فائده**:- هر قطع د عضو چي مماثلت پکښي ممکن وي په هغه قصاص سته قال الله تبارك وتعالى" والجروح قصاص" يعني مماثلت، نو په قطع د مفصل خو مماثلت ممکن دي نو قصاص لازم دي، او چي مماثلت نه وي ممکن بيا قصاص نسته، او داغه رنګه قصاص سته چي پښه يې پر بند وربرې کړي، او داغه رنګه قصاص واجب دي چي د پزي نرمك وربرې کړي او يا د غوږ نرمك وربرې کړي، مامر من امکان المماثلة فى هذا کله.

**فائده**:- دې ته اعتبار نسته چي د چا لاس يا پښه يا پزه وغيره لوي وي او د بل دا کوچني وي، ولي چي منافع د اعضاؤ د خلکو سره يو دي کذا فى الهدايه.

قال ﴿ومن ضرب عين رجل فقلعها فلاقصاص عليه﴾ او که چا يو سړي پر سترګه وواهه او سترګه يې د بېخه ځندي وکښه نو پر ده قصاص نسته ولي چي داسي ضرب پر سترګه د چا چي سترګه دې د بېخه وخېژي ممکن نه دي او کم ترهغه خو قصاص نه دي.

قال ﴿فان کانت قائمة وذهب ضوئها فعليه القصاص﴾ او که يې پسله وهلو سترګه پر ځاى ولاړه وه لکن نور يې ولاړى يعني سترګه يې د وهلو په سبب ړنده سوه نو پر هغه قصاص واجب دي او صورت د قصاص يې دادي.

﴿تحمى لـه المرئة ويجعـل علـى وجهـه قطـن رطـب وتقـابل عليه بالمرئة حتى يذهب ضوئها﴾ چي توده دي کړه سي انداره په اور وغيره او د سړي پر مخ دي پنبه چي لانده وي ورکښيږدي او انداره دې پر سترګه وربرابره کړي تر هغو پوري چي نور د ستر ګي د مابينه ځي، قال الهداية وهذا ماثور عن جماعة من الصحابة ﷺ. او په رد المحتار کي دي چي د بعض علماؤ په خط کي ماليدلي دي چي مراد د مرئه څخه په دې ځاى کي هغه مشهوره معنا نه ده چي خلګ مخ پکښي ګوري او اانداره يې بولي، ولي چي د هغې په تودولو او د ستر ګي سره په مقابله کولو سره د سترګو نور نه باطلېږي بلکه مراد داسي فولاد دي چي ډېر پالش سوي وي حتى چي مخ پکښي معلومېږي،

**درويش وايي**:- چي د وخت څخه د صحابه کرامو ﷺ تر دې زمانې پوري خو د مرئت ترجمه په معروفه اندازه سره کوي، والتجربة شيئ علحدة فلو صحت التجربة فالمراد فى کلام الصحابة ﷺ ايضا المرئة الفولادية والله اعلم.

قال ﴿وفى السن القصاص﴾ او په غاښ کي قصاص سته لقوله تعالى" السن بالسن.

**پوښتنه**:- چي په غاښ کي هغه وخت قصاص سته چي د ببخه يې وروکاږي، لامکان المماثلة" او که يې يوه حصه د غاښ ورماته کړه بيا قصاص نسته، لعدم امکان المماثلة، درويش.

قال ﴿وفى کل شجة يمکن فيها المماثلة القصاص﴾ او په هر ټپ کي چي مماصلت ممکن وي قصاص سته،

ټيکه ليکونکی:- چي اګر چه په لغت کي شجه د مخ او سر ټپ ته وايي، او چي ټپ په بل ځای کي وي هغه ته جراحت وايي لکن مراد دلته معنا عامه ده ولي چي په ټولو کتابو کي د فقه شريفي ددې مسئلې دليل دا قول د خدای پاك ﷻ راوړه سوی دي" والجروح قصاص" نو كه مراد معنا لغوي وايي نو دا آيت خو د مخ او سر ټپ ته شاملېدي كما لا يخفى، درويش.

قال ﴿ولا قصاص فى العظم الا فى السن﴾ او قصاص نسته په اډوكو كي مګر په غاښ كي، دليل يې دا دي چي امكان د مماثلت نه دي ممكن مګر نه په غاښ كي، يعني كه څوك د چا لاس ورمات كي او يا پښه وغيره ورمات كړي نو قصاص نسته ولي احتمال د زيادت او نقصان سته، وورد فى الحديث النبوى ﷺ لا قصاص فى العظم" وايضا قال عمرو ابن مسعود ﷺ لا قصاص فى العظم الا فى السن وقد بينا ﷺ مراد الحديث المطلق، وانما استثنى السن لانه قال الله تعالى" السن بالسن الآيه.

قال ﴿وليس فى مادون النفس شبه عمدا وانما هو عمد او خطاء﴾ او نسته په كم كي د نفس شبه عمد بلكه په مادون النفس كي عمد دي يا خطا، په هدايه كي وايي چي شبه عمد راجع و آله ته دي، او قتل هغه شى دي چي په اختلاف د آله مختلف كېږي او مادون النفس په اختلاف د آلې نه مختلف كېږي، فلم يبق الا العمد او الخطاء. انتهى.

قال ﴿ولا قصاص بين الرجل والمرئة فى مادون النفس ولا بين الحر والعبد ولا بين العبدين﴾ او نسته قصاص په منځ كي د

نر او ښځې تر نفس په کم کې او نه قصاص سته په مابين کې د حر او د مريي، او نه قصاص سته په مابين کې د دوو مريانو. او امام شافعي رحمه الله او امام مالك رحمه الله وايي چې په هر ځاى کې چې قصاص په نفس کې جاري کېږي هلته قصاص په اطرافو کې هم جاري کېږي، ولې چې اطراف تابع د نفس دي نو په مذکوره صورتوکې قصاص سته. او موږ وايو چې اطراف حکم د اموال لري نو مماثلت پکښې شرط دي او اطرافد نر او د ښځې، او اطراف د حر او د مريي يا د دوو مريانو خو فرق سره لري، ولې چې په ديت او په قيمت کې يې فرق سته. رمز الحقائق.

قال ﴿ويجب القصاص فى الاطراف بين المسلم والكافر﴾ ولې اختلاف نه سره لري نو مماثلت سره لري.

﴿ومن قطع يد رجل من نصف الساعد او جرحه جائفة فبرء منها فلا قصاص عليه﴾ او که چا پرې کړې لاس د بل چا د نيمايي څخه د بازواو يا يې ټپي کړي او يا يې ټپي کړي په جائفه ټپ او د هغه ټپ جوړ سو فلا قصاص عليه ولې چې ساعد خو هډوکي دي ولا قصاص فى العظم كما مر بل يجب الارش.

**فائده**:- د نصف ساق هم داغه حکم دي د جائفې ټپ بعض فقها وايي هغه ټپ چې د ننه حصې ته د سر ورسېږي، او بعض وايي چې د ننه حصې ته د نس ورسېږي.

**پوښتنه**:- چې په جائفه ټپ او د هغه ټپ جوړ سو، فلا قصاص عليه، ولې خو اډوکي دي ولا قصاص فى العظم كما مر، بل يجب الارش.

فائده:- د نصف ساق هم دغه حکم دي او جائفه ته بعض فقهاء رحمهم الله وايي هغه ته دي چي د ننه حصې ته د سر ورسېږي، او بعض وايي چي د ننه حصې ته د نص ورسېږي.

پوهنه:- چي په جائفه ته کي چي قصاص نسته تر جوړېدو د مخه ولي چي مماثلت يې ممکن نه دي، بل يحتمل الزيادة والنقصان نو لازم ثلث الدية دي چي د جائفه ارش يې بلي.

مسئله:- د لوړي حصې د ځګر چي د ننه ته سوري سي، او يا د يوه بغل ته او د بل بغل ته چي د ننه ته ورسېږي ودغه د شا ته چي د ننه برخي ته ورسېږي هم حکم د جائفه لري، او بعض فقهاء رحمهم الله وايي چي جائفه په سر او نس پوري اړه نه لري بل مذکوره تهپونه ټوله جائفه بولي، البته د غاړي ته او د ورانه ته او د پنډۍ ته جائفه نه بولي.

مسئله:- که چاړه د يوې خوا څخه د مذکوره ځايو وابلي خوا ته ووته دوې جائفې دي او دوه ثلثه د ديت پکښي لازم دي، حاصل ما فى الزخيره وجامع الزمر.

مسئله:- که جائفه ته مفضي و مرګ ته سو نو بيا قصاص النفس لازم دي او که جوړ سوي نه وو نو انتظار دي ورته وکړي که مرګ ته مفضي سو خو قصاص لازم دي او که جوړ سو ارش لازم دي.

قال ﴿واذا كان يد المقطوع صحيحة ويد القاطع شلاء او ناقصة الاصابع فالمقطوع بالخيار ان شاء قطع اليد المعيبة ولا شيئ له غيرها وان شاء اخذ الارش كاملا﴾ او كه وو لاس د مقطوع اليد جوړ او بې عيبه، او لاس د قاطع شل وو او يا يې ګوتي

کمي وې نو مقطوع الید لره اختیار دي که یې خوښه وي دغه لاس عیبجن د قاطع دي پرې کړي او نور شی ده لره نسته یعني تاوان. ولي چي قصاص او ارش نه سره جمعه کیږي. کما تقرر فی کتب الفقه.

قال ﴿ومن شج رجلا فاستوعبت الشجة مابین قرنیه وهی لا تستوعب مابین قرنی الشاج﴾ او که چا ټپي کي سر د یوه سړي یعني پر سر یې عمدا په چاړه وغیره وواهه او دا ټپ د یوه قرنه څخه تر بل قرنه پوري ورسېدي، او دغه مقدار ټپ د شاج یعني د ټپي کونکي د یوه قرنه تر بل قرنه نه رسېدي ولي د شاج سره غټ وو نو که ټپي سوي سړی هم د شاج سر د یوه قرنه څخه تر بل قرنه پوري ورټپي کوي. خو د شاج ټپ لوي راځي نو مساوات چي معنا د قصاص ده موجود نه سو، نو به څرنګه وي؟ ددې په باره کي قدوري رحمه الله وايي چي ټپي لره اختیار دي که د شاج سر په اندازه د خپل سر ورټپي کوي که څه هم د شاج پر سر قرنین د هغه نه رسېږي، او دده خوښه ده هر طرف د شاج د سر چي ټپ دده د سره شروع کوي، اذ لافرق بین طرفی راسه" او که یې خوښه وي تاوان د ټپ دي واخلي کاملا.

لومړی فایده:- چي مذکوره فی المتن خو ټپ په عرض کي د سر وي، او که ټپ په طول کي د سر وو یعني د تندي څخه تر څټه پوري د هغه حکم د شجه فی العرض دي سواء سواء، یعني د خپل ټپ په اندازه دي سر د شاج ورټپي کي قصاصا، او که تاوان اخلي.

دوهم فایده:- که د شاج سر کوچنی او د مشجوج سر غټ وو، نو که د مشجوج سر چي غټ دي ټپ یې د یوه ټېکه تر بل ټېکه رسېدلي وو نو

حکم يې څه دي، نو که مشجوع په اندازه د خپل ټپ د شاج سر ورټېپي کړي، خو د شاج د سر ټپ تر مابين القرنين تېرېږي، لصغر راسه؟

ځواب:- په دې صورت کي هم مشجوع لره اختيار دي که د شاج سر تر مابين پوري ورټيپي کوي وبس، يعنې نه په اندازې د خپل سر د ټپ ولي په هغه اندازه ټپي کول خو تر محل د ټپ د مشجوع چي بين القرنين دي په سر کي د شاج تر مابين القرنين تېرېږي لصغر راسه، او دا تجاوز د قصاص سره منافي دي او که يې خوښه وي تاوان د خپل سر د ټپ دي د شاج څخه واخلي، كذا فى الهدايه مع الزياده.

قال ﴿ولا قصاص فى اللسان ولا فى الذكر الا ان يقطع الحشفة﴾ او قصاص نسته په پرې کولو کي د ژبې د يو چا او نه قصاص سته د ذکر په پرې کولو کي د يو چا، مګر د هغه ذکر په پرې کولو کي قصاص سته که يې د ذکر سر يعني د سنتي ځاى ځندي پرې کړى وو، ولي چي ژبه او غنړ خو سره ټولېږي يعني کوچني کېږي او لوېږي يعني سره کشېږي نو اندازه د برابرۍ نه معلومېږي، او د فقهاؤ رحمهم الله په کتابو کي وايي چي د امام اعظم رحمه الله په مذهب کي په ژبه کي قصاص نسته که بعض ژبه پرې کړي، وهذا بالاتفاق" او که ټوله د بېخه ځندي پرې کړي او په دې صورت کي امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي قصاص سته، والفتوى على قول ابى حنيفة رحمه الله كذا فى قاضيخان" او که يې حشفه ځندي پرې کړه په هغه کي قصاص سته ولي د حشفې مقدار خو معلوم دي، او غټه حشفه او کوچنۍ حشفه فرق نه سره لري لاتحاد مقصودها.

مسئله:- كه يې يوه حصه د حشفې څندي پرې كړه په هغه كي هم قصاص نسته ولي چي د بعض مقدار نه معلومېږي.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿لاختلافه بصغر الحشفة وكبرها واذا اصطلح القاتل اولياء المقتول على مال سقط القصاص ووجب المال قليلا كان او كثيرا﴾ او كه صلح وكړه قاتل د قريبانو د مقتول پر مال باندي يعني هر مال چي وي كه روپۍ وي او كه بل مال، نو قصاص ساقط سو يعني په مجرد صلح سره او مال واجب سو كه لږ وي هغه مال او كه ډېر وي، قال الله تبارك وتعالى فمن عفي له من اخيه شيئ فاتباع بالمعروف واداء اليه باحسن.

فايده:- چي دا آيت په اتفاق د مفسرينو رحمهم الله په باره كي د ترك د قصاص دي، او د قبول د مال د طرفه څخه د اولياء د مقتول نازل سوي دي، او ترجمه يې دا ده كه چا ته عفو وكړه سوه يعني وقاتل ته د طرفه څخه د اولياؤ د مقتول د هغه شي چي پر قاتل لازم وو يعني قصاص په قتل عمد كي او راضي سوه اولياء په قبول د ديت او مال من اخيه يعني من دم اخيه، چي مقتول دي او ددوي قريب دي يو شی د عفو څخه نو دي اولياء د مقتول دغه مال د قاتل څخه په معروف او احسان سره اخلي يعني ډېر دې نه تنګوي او قاتل دي هم آداء د هغه مالي وكړي چي ده پر خان لازم كړي دي و اولياء ته د مقتول د احسان پر طريقه يعني هغه مال دي نه ځنډوي، كذا فى تفسير المدارك وغيره، وقال رئيس المفسرين عبد الله بن عباس رضي الله عنه نزلت هذه الآية فى الصلح وورد فى الحديث

الصحيح من قتل له قتيل فاهله بين خيرتين بين ان ياء خذوا المال وبين ان يقتلوا.

قال ﴿فان عفى احد الشركاء من الدم او صالح من نصيبه على عوض سقط حق الباقين من القصاص وكان لهم نصيبهم من الدية﴾ او كه عفو وکړه يوه د شريكانو يعني چي قريبان د مقتول دي د وينو څخه د قاتل يعني قصاص معنا دا چي كه يو قريب د مقتول قاتل ته د خپل حق څخه د قصاص مفته بخښنه وکړه، او يا يې صلح وکړه يوه د شريكانو څخه د خپلي برخې څخه د قصاص پر عوض مالي، نو ساقط سو حق د نورو شريكانو د قصاص په باره كي او باقي شريكانو لره خپله برخه ده په ديت كي د مقتول، يعني باقي شريكانو لره حق د قصاص پر قاتل نسته بلكه مجبورا به ديت د خپلو برخو اخلي.

**تشريح او وضاحت**:- چي مبني ددې قاعدې پر هغه قاعدې دي چي قصاص تقسيم نه قبلوي، وهذا باجماع الفقهاء رحمهم الله، نو چي بعض د قصاص ساقط سو په عفو مجاني او يا عفو عوضي، د بعض شريكانو تيوله قصاص ساقط سو، البته چونكه نور شريكان په عفو مجاني راضي نه دي نو دوي به خپل حق مال اخلي چي ديت دي، يعني د عفو كونكي او مالي عوض اخستونكي حصه دي څندي وباسي او نور ديت دي دوي واخلي بالغا ما بلغ.

**پوښتنه**:- چي حق اصلي په قتل عمد كي قصاص دي او اولياء د مقتول په مابين كي د قصاص او ديت اختيار نه لري زموږ په نېز، او

امام شافعي رحمه الله وايي چي اولياء د مقتول اختيار لري نو قاتل دده پر مذهب مجبور دي هرڅه فيصله چي اولياؤ د مقتول وکړه هغه به قبلوي.

قال القدوری ﴿واذا قتل جماعة واحدا عمدا اقتص من جمعيهم﴾ او که مړ کي يوه جماعت يو نفر په قصد سره يعني په آله جارحه سره کما مر من قبل، نو قصاص دي واخستل سي د ټولو څخه يعني ټوله دي پر قصاص سي، په کفايه کي وايي چي دا حکم د قصاص د ټولو هلته دي چي هر يوه د جماعت داسي مقتول ټپي کړي وي، چي د هر يوه ټپ سبب د قتل د مقتول ګرځېدای سي.

**تروېښې وايي**:- چي که پر مقتول په عدد د قاتلانو وژونکي ټپو نه وه او په عين حال کي يو کوچنی ټپ هم موجود وو چي سبب د قتل نه وو بيا دي هم ټوله قصاص سي، ولي دا کوچنی ټپ هم د يوه څخه د دوي دي، او که د کوچني ټپ کونکي معلوم وو هغه دي نه قصاصېږي، کما لا يخفی.

**پوه نبره**:- چي په هدايه کي وايي چي قصاصول د ټولو مخالف د حکم څخه د قياس دي ولي مساوات په قصاص کي شرط دي او هغه دلته نسته، لکن دا قياس موږ په هغه اثر د عمر رضي الله عنه پرېښو چي دده د خلافت په وخت کي اوه (۷) کسانو يو سړی وژلی وو، نو حضرت عمر رضي الله عنه حکم د قصاص پر ټولو وکي، ولي چي قتل په اجتماع عادت د سفهاؤ د زماني دي نو ټوله پر قصاصېږ ولي نور سفها به عبرت واخلي او داسي کار به بيا نه کوي، قال الله تعالى ولکم فی القصاص حيوة يا اولی الا لباب"

قال ﴿واذا قتل واحد جماعة فحضر اولياء المقتولين قتل لجماعتهم ولاشيئ لهم غير ذالک﴾ او که ووژل يوه سړي ډېر کسان او قربان د مقتولينو ټوله حاضر سوه نو هغه قاتل دي وژل سي د ټولو د پاره او هيڅ شی نور يعني مال وغيره نسته ددوي ذ پاره غير د هغه قصاصه د يوه نفر.

قال ﴿فان حضر واحد منهم قتل له وسقط حق الباقين﴾ او که حاضر سو يو نفر د اولياء څخه د مقتولينو يعني طلب د قصاص د قاتل يې وکړی، د هغه يوه د پاره دي قاتل قصاص سي او د نورو اولياؤ د مقتولينو حق ساقط سو ولي چي محل د بل قصاص نه دي پاته.

قال ﴿ومن وجب عليه القصاص فمات سقط عنه القصاص﴾ او که پر چا واجب وو قصاص، او هغه سړی په خدايي مرګ مړ سو نو ساقط سو دده څخه قصاص، لفوات محل القصاص.

قال ﴿واذا قطع رجلان يد رجل واحد فلا قصاص على كل واحد منهما وعليهما نصف الدية﴾ او که پرې کي دوو کسانو لاس د يوه سړي نو قصاص نسته پر هر يوه، او پر دواړو نيم ديت لازم دي ولي چي قطع اليد خو ددواړو په فعل سره راغلی، او د يوه لاس خو نيم ديت دي نو پر هر يوه ربع ديت واجب دي.

تشريح:- چي ددې مسئلې صورت دادي چي دوه کسان يوه چاړه راواخلي او دواړو ټينګه نيولې وي او د بل سړي د لاس پر يوه بند يې کښوي او لاس يې پرې کړي، وجه د عدم قصاص پر هر يوه داده چي هر يوه د هغه سړي بعض او يوه حصه د لاس ورپرې کړې ده، ټوله لاس خو

يې نه دي ورپرې کړي، نو که ددواړو لاس ورپرې کړه سي خو ددوي پوره لاس د هغه سړي د يوې حصې په عوض کي پرې کړه سود، وهذا ينا فى القصاص لان مبناه على المساوات كما مر من قبل مرارا.

فائده:- دا ربعه د ديت چي پر هر يوه لازمه دة د خپل شخصي مال څخه به يې ورکوي، يعني عاقله نسته ولي چي په عمدا قتل يا قطع کي پر عاقلې شى نسته.

فائده:- امام شافعي رحمه الله وايي چي د دواړو لاسونه دي پرې کړه سي، دى قطع پر قتل قياسوي ولي چي اطراف تابع د نفس دي. يعني دوه کسه چي يو سړى عمدا مړ کړي دواړه پر قصاصيږي، مونږ وايو چي دا قياس مع الفارق دي ولي د روح ختل خو تجزيه او تقسيم نه قبلوي، نو ځکه دواړه قاتلان مستقل دي په قتل کي، نو پر هر يوه کامل قصاص لازم دي بخلاف القطع فانه يقبل التجزية والتقسيم" او زمونږ د مذهب دليل د مخه عنقريب تېر سو.

قال القدورى ﴿وان قطع واحد يمينى رجلين مخضرا فلهما ان يقطعهما يده وياخذا منه نصف الدية ويقسمانه نصفين﴾ او که پرې کړه يوه سړي يعني عمدا د دوو کسانو راسته لاسونه.

فائده:- د يمينى د لفظ فائده داده که دغه سړي د يوه سړي راسته لاس ورپرې کړي او د بل سړي يې چپه لاس، نو ددغه سړي دي دواړه لاسونه ورپرې کړه سي، لتعدد محل القصاص قاله صاحب العنايه، نو دغه دواړه کسان حاضر سوه يعني د قصاص د پاره نو دوي ته دا جواز دي چي د قاطع هم راسته لاس ورپرې کړي، او دوي دوه واخلي د قاطع

څخه نيم ديت او بيا يې په خپل مابين کي سره ووېشي يعني چي ربع ديت وهر يوه ته ورسېږي.

قال ﴿فلو حضر واحد منهما وقطع يده فللآخر عليه نصف الدية﴾ او که حاضر سو يو د هغه دوو کسانو څخه، او د قاطع لاس يې وربرې کړي، نو هغه بل سړی به د قاطع څخه نيم ديت اخلي او پر قاطع لازم هم دي.

**تشريح**:- چي ددې عبارت فائده دا ده چي په صورت مذکوره کي اجتماع ددواړو کسانو ضروري نه ده ولي چي هر يو حق مستقل د قطع اليد لري، او چي يو يې لاس وربرې کړي نو د هغه بل د پاره محل د قصاص نه سو پاته نو مجبورا د هغه حق نصف ديت دي.

قال ﴿ولو اقر العبد بقتل العمد لزمه القود﴾ او که اقرار وکړی مريي د يو چا په قتل عمد سره نو پر هغه قصاص لازم دي.

**تشريح**:- چي مريي په حق کي د وينو باقي پر خپل اصلي حريت دي او دا اقرار دده صحيح هم دي ولي چي په دې کي دی متهم بالکذب هم نه دي لانه ضرر له وبطلان حق المولى ضمنا لاباس به.

**فائده**:- اقرار د قتل عمد د مريي صحيح دي که مريي ماذون فی التجارت وي او که محجور وي لما مر انه باق على اصل الحريۍ فی حق الدم.

**فائده**:- که مريي په قتل خطاء اقرار وکړي هغه اقرار يې نه دي صحيح ولي د قتل خطاء عوض خو مال دي ده لره خو مال نسته، او رقبه خو يې ملك ده مولی ده.

پوښتنه:- که دغه مريي چي اقرار يې وکړی په قتل خطاء سره او دی ماذون وو بايد اقرار يې صحيح سي" کاقرار بدين غيره عليه؟

ځواب:- دی خو ماذون بالتجارت وو قتل خطاء خو د قسمه څخه د تجارت نه ده.

قال المصنف ﴿ومن رمى رجلا عمدا فنفذ السهم منه الى آخر فماتا فعليه القصاص للاول والدية للثانى على العاقلة﴾

او که چا وويشتی يو سړی قصدا نو تر هغه غشی ووتي او په بل سړي کي ومښتي او دواړه مړه سوه، نو پر دغه رامي قصاص دي د اول د پاره ولي چي د قتل عمد جزاء قصاص دي، او ديت دي د دوهم د پاره او ديت هم پر عاقله د قاتل ده ولي چي دوهم سړی قتل خطاء دي او موجب د قتل خطاء ديت دي پر عاقله کما مر.

# ﴿كتاب الديات﴾

پوښتنه:- چي ديات جمع د ديت ده، والديت بالفارسية خون بهادن كما فى الصراح سمى المال بالدية، تسمية بالمصدر.

پوښتنه:- چي په قتل کي د خطاء، وما يجرى مجراه، وفى شبه العمد، وفى القتل بسبب، وفى قتل الصبى والمجنون لان عمدهما خطاء" په دې ټولو قتلو کي ديت دي او هغه پر عاقله د قاتل دي.

تروېښتي وايي:- چي د دغو قتلو معناوي په كتاب الجنايات کي تېري سوي.

فائده:- پلار چي زوي مړ کړي په قصد سره چونکه پلار نه پر قصاصېږي لکن ديت به پر پلار واجب وي دده په مال کي په درې کاله کي، كذا في الجوهره، والهدايه، وغيرهما من كتب الفقه.

قال المصنف ﴿اذا قتل رجل رجلا شبه عمد فعلى عاقلته دية مغلظة وعليه كفارة﴾ او كه ووژی يو سړي بل سړی په شبه عمد سره نو پر عاقله د قاتل ديت سخت دي، او پر قاتل كفاره لازمه ده.

پوهنه:- چي د شبه عمد ذكر د مخه تېر سو، او د عاقلې او ديت مغلظ او د كفاره قتل به وروسته راسي انشاء الله تعالى.

قال ﴿ودية شبه العمد عند ابى حنيفة وابى يوسف رحمهما الله تعالى مائة من الابل ارباعا خمسة وعشرون بنت مخاض وخمسة وعشرون بنت لبون وخمس وعشرون حقة وخمس وعشرون جذعة﴾ او ديت د شبه العمد د امام اعظم رحمه الله او ابو يوسف رحمه الله په نېز سل اوښه دي پر څلور ډوله، (۱) دا چي ۲۵ پنځه ويشت به يې بنت مخاض وي، (۲) دا چي ۲۵ پنځه ويشت به بنت لبون وي، (۳) دا چي پنځه ويشت به يې حقه وي او (۴) دا چي پنځه ويشت به يې جذعه وي.

پوهنه:- چي بيان د بنت لبون، بنت مخاض، حقې، او جذعې په كتاب الزكوات كي تېر سوي دي.

فائده:- دا ديت مغلظ دي په نېز د شيخينو رحمهما الله او امام محمد او امام شافعي رحمهما الله وای چي د شبه عمد دېرش جذعې دي، او دېرش حقې

دي او ځلوېښت هغه اوښاني چې په شپږم کال کې داخلې وي، او حاملاني وي، والدلائل فى الشروح المبسوطة.

تروېږمې وايي:- چې چونکه کتاب الزکوات د نکاح قدوري څخه ډېر لري وو، نو ځکه وایم چې بنت مخاض هغه جونګۍ ده چې په دوهم کال کې داخله وي، او بنت لبون هغه اوښه ده چې په دریم کال کې داخله سوې وي، او حقه هغه اوښه ده چې په څلورم کال کې داخله سوې وي، او جذعه هغه اوښه ده چې په پنځم کال کې وي.

قال ﴿ولا يثبت التغليظ الا فى الابل خاصة فان قضى بالدية فى غير الابل لم تتغلظ﴾ او نه ثابتېږي تغليظ مګر په اوښانو کې خاص، ولې چې دا تغليظ په اوښانو کې په صريح حديث سره ثابت دي، نو بل ديت پر هغه نه قياسېږي، قاله صاحب العنايه، نو که قضا وکړه سوه د ديت په غير کې د اوښانو نو هغه ديت نه مغلظ کړه کېږي ولې چې د شارع د خوا اوربده سوى تغليظ په اوښانو کې دي وبس.

قال ﴿وفى قتل الخطاء تجب به الدية على العاقلة والكبارة على القاتل﴾ او په قتل خطاء کې ديت په خطاء سره واجبېږي پر عاقله او قاتل باندي، قال الله جل سلطانه" ومن قتل مؤمنا خطاء فتحرير رقبة مؤمنة ودية مسلمة الى اهله.

قال ﴿والدية فى الخطاء مائة من الابل اخماسا﴾ يعني شل بنت مخاض دي، او شل ابن مخاض يعني نران، او شل بنت لبون دي، او شل حقې دي، او شل جزعې دي، په حديث شريف کې چې روايت يې احمد

او ابو داؤد او ترمذي رحمهم الله د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه هم داغه ترتيب راغلي دي.

**فائده**:- چي تخفيف په ديت کي د خطاء تر ديت د شبه عمد په دوه ځاى کي دي يو داچي ديت د شبه عمد ارباعا وو کما مر، او ديت د خطاء اخماسا دي، او بل دا چي په ديت شبه العمد کي نر او ښځه نه وه، او په ديت الخطاء کي ابن لبون نر اوښان هم داخل سوه.

**پوښتنه**:- د نر او ښځي څه فرق دي؟

**ځواب**:- د نر څخه خو بې كرايه كشي او سپرتيا بله فائده نه اخسته كېږي او د ښځي زائد تر سپرتيا او كرايه كشي د توالد او تناسل فائده هم اخسلت كېږي.

قال ﴿ومن العين الف دينار ومن الورق عشرة الاف درهم﴾،

او ديت د سرو زرو څخه زر (١٠٠٠) دينار دي، او د سپينو زرو څخه لس زره (١٠٠٠٠) درهم دي.

**فائده**:- چي قيمت د هر دينار لس درهم دي نو زر دينار لس زره درهمه كېږي، وبالعكس فلافرق فى المعنى، او امام شافعي او امام مالك رحمهما الله وايي چي دوولس زره (١٢٠٠٠) درهمه دي، والاختلاف بسبب الاختلاف فى الحديثين، ومع ذالك ترجيح زمونږ مذهب لره ده ولي چي زمونږ د مذهب ديت اقل دي او اقل متعين دي او يقيني دي كذا فى مجمع الانهر.

قال المصنف ﴿ولا يثبت الدية الا من هذه الانواع الثلثة عند ابى حنيفة رحمه الله﴾ او دیت نه ثابتيږي مګر ددغو درو نوعو څخه یعني ابل اوښ، سره زر، او سپین زر په نیز د امام اعظم رحمه الله.

﴿وقالا رحمهما الله تعالى منها ومن البقر مائتا بقرة ومن الغنم الفا شآة ومن الحلل مائتا حلة كل حلة ثوبان﴾

د امام صاحب دلیل:- چي دیت چي په مشهورو احادیثو مبارکه وو کي ثابت دي، هم د دغو درو نوعو څخه ثابت دي فلا يقاس عليه غيرها، نو ددې سببه امام اعظم رحمه الله پر دغو درو نوعو دیت منحصر کړی دي، او دلیل د قول د یارانو دادي چي امیر المؤمنین عمر رضي الله عنه په دوران کي د خپل خلافت دیت په مذکوره شپږو شیانو بیان کړي دي چي صحابه کرام رضي الله عنهم هم حاضر وه او چا انکار پر وه نکړی، فكان اجماعا.

سوال:- په بقراتو (غویانو) کي خو ډېر فرق سته او داغه رنګه په پسو کي ډېر فرق سته، او داغه رنګه په حللو کي هم فرق غیر متناهي موجود دي نو تعیین د ماهو الواجب من هذه الثلث فى الديت مونږ په څه شي سره کوو؟

جواب:- فقهاء رحمهم الله تعیین په دغو درو نوعو کي داسي بیان کړي دي چي هره بقره به پنځوس درهمه قیمت لري، او هر پسه به پنځه درهم قیمت لري، او هره حله به پنځوس درهمه قیمت والا وي.

پوښتنه:- دغه هر نوعه په اعتبار د قيمت مذكوره خو لس زره ( ۱۰۰۰۰ ) درهمه كېږي نو فائده ددې اختلاف په مابين كي د امام اعظم رحمة الله عليه او صاحبينو رحمة الله عليه څه ده؟

ځواب:- فائده يې دا ده كه چېري ولي د مقتول او ولي د قاتل پر اكثر تر دوو سوو بقراتو او يا تر دوو زرو پسو او يا دوه سوه حلو بالا صلح سره وكړه د امام اعظم رحمة الله عليه په نېز روا دي ولي چي دا انواع ثلثه خو ديت نه دي چي زياده تر مقدار شرعي پكښې نارو ادي، او د يارانو رحمة الله عليه په نېز دغه زيادت په صلح سره ناجائز دي ولي چي دا درې نوع خو هم ديت دي، او په ديت كي بالاتر ديت صلح ناروا ده لكه پر زائد تر سلو اوښانو مثلا چي ولي د قاتل او مقتول يې سره وكړي.

فائده:- مراد د حلتانو څخه قميص او پرتوګ دي.

قال ﴿ودية المسلم والذمى سواء﴾ او ديت د مسلمان او د اهل ذمه سره برابر دي، نو نر د اهل ذمه وو لكه زموږ نر دي او ښځې ددوي لكه زموږ ښځې دي په قتل نفس او مادونها كي، عنايه،

او امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي ديت د نصراني او يهودي څلور زره درهمه دي، او ديت د آتش پرسته چي مجوسي يې بولي اته سوه روپۍ دي، زموږ قول هغه قول د عليه السلام دي ديت كل ذى عهد فى عهده الف دينار، وكذالك قضى ابوبكر وعمر رضي الله عنهما كذا فى الهدايه.

قال ﴿وفى نفس الدية وفى المارن الدية وفى اللسان الدية وفى الذكر الدية وفى العقل اذا ضرب راسه فذهب عقله

الديـة وفـى اللحـيـة اذا حلقت فلم تثبت الدية وفى شعر الراس الديـة و فـى الحاجبين الديـة وفـى العينين الدية وفى اليدين الديـة وفى الرجلين الديـة وفـى الاذنيـن الديـة وفـى الشفتين الديـة وفـى الاثنيـن الديـة وفـى ثدي المرئة الدية﴾ او د نفس په وژلو كي ديت دى، او نرمك د پزي چي ځندي پرې يې كړي ديت دي، او په ژبه كي چي ځندي پرې يې كړي ديت دي، او چي ذكر د سړي ځندي پرې كړي ديت دي، او پـه عقل كي چي پر سر يې ووهي او عقل يې ختم سي ديت دي، او پـه ږره كي ديت دي چي داسي يې وروخرو يې چي بيا وېښتان نـه راشنه كېږي، مثلا تېزاب يې پر وېښتانو ورتوي كړي، او د سر په وېښتانو كي چي بيا نه راشنه كېږي ديت دي، او د ورزو په خريلو سره چي بيا نه راشني كېږي ديت دي، او چي په دوارو سترګو يې ړوند كي ديت دي، او كـه په يوه سترګه د مخه ړوند وو او هغه بله سترګه يې يو سړي ور ړنده كړه نيم ديت دي، او دواړه لاسونه چي يې ورپرې كړي پوره ديت دي، او دواړې پښې چي يې ورپرې كړي پوره ديت دي، او دواړه غوږونـه چي يې ورپرې كـړي ديت دي، او دواړه شونډان چي يې ورپرې كړي ديت دي، او دواړې خوټې ځندي پرې كړي ديت دي، او په دواړو تيو كي د ښځي چي ځندي پرې يې كړي ديت دي.

**تشريح**:- چي اصل او دليل د دغو مسئلو د عضو خو هغه حديث نبوي دي چي سعيد بن المسيب ﷺ يې روايت كړى دي چي نبي ﷺ وويله، فى النفس الدية وفى اللسان الديةوفى المارن الدية"

**فائده**:- قانون كلي په اطرافو كي د انسان دادي چي هري قطعي چي د انسان د عضو منفعت على الكمال د مابين څخه وړي او يا جمال او ښايست مقصود په انسان كي هم على الكمال فوت وه په هغه كي ټوله ديت لازميږي ولي چي په دې كي اتلاف د نفس دي من وجه، او په انسان كي اتلاف ملحق په اتلاف الكل سره دي تعظيما للآدمى، كما يدل عليه الحديث المذكور آنفا فى قطع بعض الاطراف حيث اوجب كل الدية فيه، هداية.

**تفريعات وايي**:- چي پر اصل او قانون مذكوره ډيري تفريعاتي بناء كېږي كما فى الهدايه وغيره، هغه دادي چي د پزي په پرې كولو كي پوره ديت دي، ولي چي دا پرې كول جمال د انسان على الكمال د مابين څخه وړي، او داغه رنګه كه يې نرمك د پزي ورقطع كړي پوره ديت دي ولي چي د نرمك په پرې كولو كي جمال انساني باطلېږي، او كه نرمك او سږمې وريرې كړې تر يوه ديت بالاشى نسته، لان انف عضو واحد" او ژبه چي يې وريرې كړي منفعت او مقصود د خبرو يې ورضائع كړي نو پوره ديت لازم دي، او كه يې بعض ژبه وريرې كړه بعض باقي وه لكن خبرې يې نه سواى كولاى هم پوره ديت لازم دي، لفوات المنفعة المقصودة وهو النطق" او كه يې بعض حروف ويلاى سواى او بعض حروف يې نه سواى ويلاى د فقهاء د اختلاف سره سره صحيح مذهب دادي كي اكثر حروف ويالاى سوه او بعض حروف يې د قطع اللسان په سبب نه سواى ويلاى نو پوره ديت خو نسته لعدم فواة فائدة النطق وهى الافهام والتفهيم" لكن په سبب د خلل په نطق كي حكومت عدل لازم دي،

او که يې ډېر حروف نه سواى ويلاى او بعض حروف يې ويلاى سواى نو پوره ديت غواړي ولې چې افهام د بل چا چې فائده د نطق ده نسي کولاى، او که يې ذکر ځندي پرې کړي وو هم پوره ديت لازم دي، ولې چې د ذکر فوائدي ټوله فوت سوې چې هغه وطي دي، د اولاد زېږول دي، بولې دي او مني لري غورځول دي، او ټينګول د بولو دي، او ادخال په فرج د ښځې دي، او که يې خوټې ځندي کښلې وې هم پوره ديت دي ولې چې فائده د خوټو چې پر وطي قدرت دي وغيره بالکليه فوت سوه، لکه د موټر ټائيرونه چې ځندي وکاږې او نور موټر روغ وي، او که يې د غنړ ککري ځندي پرې کړې وه چې حشفه يې بولو هم پوره ديت لازم دي ولې چې حشفه مدار د ادخال فى الفرج ده او دا نوره توله د غنړ تابع د حشفې ده، او د ږري خريل چې بيا نه راشنه کېږي او د سر وېښتيان يا د ورزو وېښتيان چې بيا نه راشنه کېږي هم پوره ديت دي، لفوات الجمال الانسانى بالمذکورات" او د سر په وېښتيانو کي د امام شافعي امام احمد او امام مالك رحمه الله مذهب دادي چې پوره ديت نسته بلکه حکومت عدل غواړي، والدلائل فى المطولات.

فائده:- مصنف رحمه الله پخپل عبارت کي ثدى المرئة ذکر کړی ولي چې په قطع د دواړو تيو د ښځې فائده مخصوصه د تيو چې ارضاع د ولد ده د مابين څخه ځي بالکمال نو ځکه پوره ديت واجب دي.

دوهم تنبيه:- که يې سرونه د تيو ورپرې کړه هم پوره ديت واجب دي ولي چې سرونه د تيو نه وي هم ارضاع نسي کولاى، او د نر تي که يې ورپرې کړه چونکه نه رفعه د فائدې مخصوصي پکښې سته او نه رفع د

جمال نو ددې سببه ديت نسته بلکه فيصله ته د عادل سړي دي رجوع وکړي.

فائده:- په قطع کي د ثديو د ښځي چي پوره ديت دي هغه د ښځي ديت مراد دي چي هغه نصف ديت د نر دي، او چي يو تی ځندي پرې کړي نيم د ديت د ښځې دي.

قال المصنف رحمه الله ﴿وفى كل واحد منها نصف الدية﴾

او په هريوه کي د دغو شيانو يعني يو لاس يا يوه پښه يا يوه سترګه وغيره کي نيم ديت دي، که د نر وه د نر نصف الديت دي، او که د ښځي وه د ښځي نصف الديت دي.

قال ﴿وفى اشفار العينين الدية وفى احدها ربع الدية﴾ او په قطع کي د باڼو ګانو د دواړو سترګو پوره ديت دي، ولي چي ددې په قطع کي جمال د مخ بالکليه د مابين څخه ځي، او فائده د باڼو ګانو چي دفع د خاشې وغيره ده هم د مابين څخه ځي، او که يې د يوې خوا باڼوګان ورقطع کړه څلورمه د ديت ده ولي باڼوګان خو کښته او لوړ څلور دي.

تنبيه:- چي باڼوګان داسي ورقطع کړي چي بيا نه راشنه کېږي نو ديت يا ربع ديت لازم دي او که يې باڼوګان بېرته راشنه سوه بيا هيڅ شی نسته، قاله فى الجوهره.

قال ﴿وفى اكل اصبع اليدين والرجلين عشر الدية والاصابع كلها سواء﴾ او په هره ګوته کي د ګوتو د لاسو او پښو لسمه د ديت

لقوله عليه الصلوة والسلام فى كل اصبعة عشرة من الابل" اولس اوښان د سلو اوښانو لسمه حصه ده، او ګوتې ټولې سره برابرې دي ولې حديث شريف او په اصل منفعت كې هم سره برابري دي نو زيادت د مقدار يې اعتبار نه لري.

قال ﴿وفى كل اصبع فيها ثلثة مفاصل ففى احدها ثلث دية الاصبع وما فيها مفصلان ففى احدها نصف دية الاصبع﴾ او په هره ګوته چې درې بنده وي نو په قطع كې د يوه بند دريمه حصه د ديت د ګوتې ده يعني دلسو اوښانو دريمه ده، او هره ګوته چې پكښې دوه بنده وي نو په قطع كې د يوه بند يې نيم ديت لازم دي.

قال ﴿وفى كل سن خمس من الابل والاسنان والاضراس كلها سواء﴾ او په هر غاښ كې چې وروه يې كاږي پنځه اوښان دي ولې چې په حديث مبارك كې راغلي دي چې حضرت ابو موسى الاشعرى ﷺ يې روايت كړى دي د يوه غاښ د پاره پنځه اوښان تاكل سوي دي، او اسنان او اضراس ټوله سره برابر دي ولې چې په اصل منفعت كې ټوله سره برابر دي په بعض كې نفع د قطعي موجوده ده او په بعض كې ښائست د خندا سته او په بعض كې ميده كول د طعام سته.

**پوښتنه**:- چې ديت هلته لازم دي چې په خطاء كې يې غاښ وراېستلى وي، او كه يې په قصد سره غاښ وركښلى وو په هغه كې قصاص دي، جوهره.

فائده:- صاحب العنایه پر عبارت د مصنف رحمه الله یو معقول سوال کړي دي چي مصنف ولي اسنان او اضراس سره مقابل کړه، ولي سن خو اسم جنس دي ټولو غاښو ته شامل دي نو مصنف باید داسي ویلي وای والاسنان کلها سواء.

فائده:- پوره غاښونه د اکثرو خلکو دو دېرش (۳۲) وي. څلور په دغو کي ثنایا بولي چي د مخ غاښونه دي دوه لوړ او دوه کښته، او څلور رباعیات بولي دوه لوړ او دوه کښته متصل په ثنایا سره، او څلور انیاب بولي چي هغه متصل په رباعیاتو پوري دي دوه لوړ دوه کښته، او څلور ضواحك بولي چي متصل په انیابو پوري دي دوه لوړ او دوه کښته او دولس غاښونه طواحین بولي شپږ کښته او شپږ لوړ، او څلور نواجذ بولي دوه لوړ او دوه کښته چي اضرس الحلم والعقل یې هم بولي ولي چي دا غاښونه وروسته تر بلوغ شنه کېږي وقت کمال العقل.

څرګندونه:- چي ددې تفصیل څخه حقیت او صحت د سوال د عنایه پر قدوري باندي معلوم سو، والله اعلم باالصواب.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن ضرب عضوا فاذهب منفعته ففيه دية كاملة كما لو قطعه كاليد اذا شلت والعين اذا ذهب ضوءها﴾ او که چا وواهه یو اندام د یو چا نو هغه وهلو قطع کړي منفعت او فائده د هغه اندام نو په دې وهلو کي پوره دیت دي لکه چي وریرې یې کړي، لکه چي پر لاس یې ووهي او هغه لاس شل سي او یا یې پر سترګه

ووهي د هغې نور ولاړ سي، په هدايه کي وايي چي په اندامو کي اعتبار منفعت لره دي نه صورت لره د اندام.

قال ﴿والشجاج عشرة الحارصة﴾ او ټپونه لس قسمه دي چي يو يې حارصه بولي دا هغه ټپ ته وايي چي صرف پوست وکرږي او وينه نه راوباسي، او يا پوست وکوټي او وينه نه راوباسي ﴿والدامعة﴾ او بل دامعه ټپ بولي چي وينه خو راوباسي لکن ونه بهېږي لکه د سترګي وښکه چي راتوي نه سي ﴿والدامية﴾ او بل داميه ټپ بولي چي وينه راوباسي او وبهېږي ﴿والباضعة﴾ او بل باضعه ټپ بولي چي پوست يې پرې کړي سره د وينو وتلو ﴿والمتلاحمة﴾ او بل متلاحمه ټپ بولي چي غوښه يې هم پرې کړي ﴿والسمحاق﴾ او بل سمحاق ټپ بولي، هدايه وايي چي سمحاق په سر پوري خاص دي، چي هغه ټپ ته وايي چي د غوښو او د هډوکي د سر تر مابين چي نري پرده د هغې ته ورسېږي.

﴿والموضحة﴾ او بل موضحه ټپ دي چي په ټپ سره هډوکي ښکاره سي ﴿والهاشمة﴾ او بل هاشمه ټپ دي چي هډوکي ورمات کړي ﴿والمنقلة﴾ او بل منقله ټپ دي دا هغه ټپ دي چي هډوکي خو ورمات کړي او هډوکي سره تېر او بېر سي ﴿والآمة﴾ او بل آمه ټپ بولي هدايه وايي چي دا هغه ټپ دي چي ام الدماغ ته ورسېږي يعني هغه پردې ته چي په هغې ماغزه محفوظ دي.

قال ﴿ففی الموضحة القصاص ان كان عمدا﴾ نو په موضحه ټپ کي قصاص سته که چېري په قصد سره وو، سبب دادي چي په دې ټپ کي مساوات ممکن دي، يعني د شاج په سر دي او يا په بله عضو دي چاړه ورچخ کړي او هډوکي ته دې وررورسوي.

قال ﴿ولاقصاص فی بقية الشجاج﴾ او قصاص نسته په باقي ټپو کي يعني ماسوا د موضحه څخه، ولي په هغو کي مساوات نه سي راتلای ولي چي تر موضحه چي کم وي داسي حد معين نسته چي چاړه دې ورته ورسېږي، او تر موضحه لوړ ټپونه په هغو کي ماتول د هډوکي دي، وقد قال عليه السلام لاقصاص فی العظم، مجمع.

قال ﴿وفی مادون الموضحة ففيه حكومة العدل﴾ او په کم کي تر موضحه حکومت د عدل دي، هغه داسي چي دا مجروح ته مريي فرض کړه نو يو وار يې قيمت کړه بېله دې ټپه مثلا قيمت يې زر روپۍ وو، او بيا يې د ټپ د اثر سره قيمت نهه سوه روپۍ کيدی، نو سل روپۍ خو لسمه د زرو روپو ده، نو دا تفاوت په ديت کي معتبر کړه نو ديت خو پوره لس زره روپۍ وو نو د هغو لسمه زر روپۍ د نو زر روپۍ ديت د دغه ټپ دي، وهذا معنا حكومة العدل، قال فی مجمع الانهر وبه يفتی.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿وفی الموضحة ان كانت خطاء نصف عشر الدية﴾ نو په موضحه ټپ کي که په خطاء سره وو نيمی د لسمې د پوره ديت لازم دي، پوره ديت سل اوښان دي کمامر لسمه يې لس اوښان دي،

نیمی د لسو پنځه اوښان دي نو پنځه اوښان دیت د موضحه دي چي په خطاء سره وي.

﴿وفی الهاشمة عشر الدیة﴾ او په هاشمه ټپ کي چي په خطاء سره وي لسمه ددیت ده یعني لس اوښان.

﴿وفی المنقلة عشر ونصف عشر الدیة﴾ او په منقله ټپ کي یوه لسمه حصه او بله نیمی د لسمې دیت دي یعني پنځه اوښان.

﴿وفی الآمة ثلث الدیة﴾ او په آمه ټپ کي چي په خطاء سره وي دریمه د دیت ده یعني دیارلس اوښان او د یوه اوښ د قیمت دریمه.

فقیر وایي:- چي په کتاب کي د عمرو بن خرم راغلي دي چي نبي ﷺ دا ذکر سوي مقدارونه په مذکروه ټپو کي چي په خطاء سره وي تاکلي دي.

قال ﴿وفی الجائفة ثلث الدیة فان نفذت فهی جائفتان ففیهما ثلثا الدیة﴾ او په جائفه ټپ کي یو ثلث د دیت دي، او دغه جائفه ټپ که هغه بلي خواته سوري سو یعني په نس کي یې وواهه مثلاً چاړه د شا د خوا څخه ووته، نو دا دوې جائفې دي یوه د شا د خوا او یوه د مخ یعني د نس د خوا، نو په دې دوو جائفو کي دوه ثلثه د دیت دي، هکذا حکم ابو بکر الصدیق ﷺ فی الجائفة النافذة کما نقل فی الهدایة.

قال ﴿وفی اصابع الید نصف الدیة﴾ او په ګتو کي د یوه لاس چي په خطاء یې وربرې کړي نیم دیت دي، ولي د هري ګوتي لسمه د دیت ده

يعني لس اوښان، نو په پنځو ګوتو کي پنځوس اوښان دي چي نيمايي حصه د پوره ديت ده.

﴿فان قطعها مع الكف ففيها نصف الدية﴾ او که يې د ګتو سره ورغوى هم ورېرې کړي، نو په هغه کي هم نيم ديت دي، لقوله عليه السلام وفى اليدين الدية وفى احدهما نصف الدية" ولي چي ورغوى تابع د ګتو دي ولي چي تينګول د شني چي جنس منفعت د لاس دي په ګوتو سره کېږي، كذا فى الهدايه.

قال ﴿وان قطعها مع نصف الساعد ففى الكف نصف الدية وفى الزيادة حكومة العدل﴾ او که يې ورېرې کی نيمی د بازو د ګوتو سره نو په ورغوي کي يعني سره د ګوتو نيم ديت دي، او په بالا بود کي چي ساعد دي حکومت د عدل دي وقد مر معنا حكومت العدل او دا هم مذهب دي د طرفينو رحمه الله، او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي مافوق الكف والقدم تابع د ګوتو دي، والتفصيل فى الجوهره.

قال ﴿وفى الاصبع الزائدة حكومة العدل﴾ او په زائده ګوته کي لکه چي په بعضو کسانو کي دا ګوته پيدا کېږي. فيصله د عدل ده دا هم له جهته د شرافت د انسان ده چي دغه زائده ګوته خو جز دده ده.

**ښودنه** :- چي دغه زائده ګوته که عمداً ور پرې کړي او که يې خطاءً ورېرې کړي حکم يې يو دي ولې دغه ګوته نه منفعت پکښې دی او نه زينت پکښې دی بلکې په شمس بازغه کې وايي چي دا ګوته په واقعه کې ضرر ده. ولې په منګي وغيره د لاس ګوتې ددې سره نه ننوځی او د

زائد غابن هم داغه حکم دی او په هغه حدیث مبارك کې چې و فی کل اصبع کذا که څه د اصبع توری مطلق راغلی دی، خو هغه محمول پر متعارفه ګوته دی. وهذا حاصل ما فی الکفایه.

قال ﴿ و فی عین الصبی و لسانه و ذکره اذا لم یعلم صحته حکومة عدل ﴾ او په سترګه کې د ښځې کوچني او په ژبه کې دده او په ذکر کې دده یعنې چې څوك دغه اعضاء دده ور پرې کړي او دا نه وي څرګنده چې په سترګه دا کوچنی کوم شی وینې او یا په ژبه خبرې کولای شي او یا یې ذکر پورته کېدی او که نه ؟ حکومت د عدل دی. ولې چې حکمت الهی په دغو اندامو کې منافع د دوی دی، نو چې منفعت یې په شك کې وي نو دیت هم نه سته. لانها لا یلزم باشك فتجب حکومۍ عدل تشریفا للآدمی او آئمه ثلاثه وایي چې په دغو ګردو صورتو کې کامل دیت لازم دی.

فائده :- او که دا څرګنده وه چې مذکوره اعضاء د کوچني صحیح وه یا په شاهدانو سره او یا په اقرار د خدمت کوونکي بیا یې حکم حکم د بالغ ددغو اعضاوو دی په عمد او په خطا کې بعنې په عمد کې قصاص دی او په خطا کې دیت کامله دی کما مر.

قال ﴿ و من شج رجلا موضحة فذهب عقله او شعر راسه دخل ارش الموضحة فی الدیة ﴾ او که چا ټپي کړی بل سړی په موضحه ټپ سره نو په دغو وهلو د سړي عقل هم له منځه لاړی او یا د سر وېښتان یې له منځه ولاړل. نو داخل دی تاوان د موضحه ټپ په دیت

کې يعنې پر شاج باندې ديت لازم دی او د موضحه ټپ بېل تاوان نه سته، ولې چې د عقل منفعت يې په ټوله بدن پورې تړلی دی چې عقل له منځه ولاړی داسې وګڼه چې ټول بدن له منځه ولاړی نو ددې داسې مثال دی لکه په موضحه ټپ چې سړی بل سړی ټپي کړي او په هغه ټپ سره هغه سړی مړ سي نو يو ديت پر لازم دي.

**نوربحثي وايي** :- چې دا مذهب زموږ د درو امامانو دي، او حسن بن زياد رحمه الله وايي چې موضحه ټپ او ذهاب العقل دوه جنايته دي نو يو په بل کې نه داخلېږي لکه تاوان د دوو لاسو د قطعي چې يو په بل کې نه داخلېږي، او هر چې د وېښتانو د سر مسئله ده تفصيل يې دادي که د يوې برخې وېښتان له منځه ولاړه چې بيا نه را شنه کېده نو د موضحه ټپ ارش لازم دي. او که يې د ټوله سر وېښتان له منځه ولاړه نو چونکه ټوله زينت له منځه ولاړی نو پوره ديت لازم دي او د موضحه تاوان پکښې داخل دي.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان ذهب سمعه او بصره او كلامه فعليه ارش الموضحة مع الدية﴾ او که چېرې ولاړه د موضحه ټپ په سبب اورېده د غوږو د مضروب، او يا يې ديد د سترګو ولاړې، او يا د خبرو کولو څخه ولوېدی، نو پر ضارب باندې تاوان د موضحه ټپ سره د ديت لازم دي، ولې اورېدل او ديد کول او خبرې کول هر يو جلا اصل دي چې په هر يوه کې کامل ديت لازمېږي نو موضحه ټپ ددوي په موجب کې چې ديت دي نه سي داخلېدلای، فيجب ارش الموضحة عليحدة.

پوره تنبيه:- چي دا مذهب د طرفينو دي، او امام ابو يوسف رحمة الله عليه وايي چي موضحه ټپ په ديت كي د سمع او كلام داخليږي او په ديت كي د بصر نه داخليږي.

قال ﴿ومن قطع اصبع رجل فشلت اخرى الى جنبها ففيها الارش ولا قصاص فيهما عند ابى حنيفة رحمة الله عليه﴾ او كه يو چا پرې كړه ګوته د يو چا نو د هغه د پرې كېدو په سبب بله ګوته د هغه ورسره شله سوه، نو د دواړو ګوتو تاوان لازم دي او قصاص پكښي نسته په نېز د امام اعظم رحمة الله عليه او ياران وايي چي د اولي ګوتي قصاص لازم دي او د شلي ګوتي تاوان پر لازم دي، والدلائل للفريقين فى الشروح المطولة.

قال ﴿ومن قلع سن رجل فنبت مكانها اخرى سقط الارش﴾ او كه چا وكښي غاښ د يو چا نو راشن سو په ځاى كي د هغه غاښ بل غاښ، نو د ختل سوي غاښ ارش او تاوان ساقط سو.

پوره تنبيه:- چي دا مذهب دي د امام اعظم رحمة الله عليه او ياران وايي چي پر جنايت كونكي باندي پوره تاوان سته ولي ده خو جنايت وكړي او دا نوى غاښ خو د خداى تعالى جل جلاله جلا نعمت دي نو د خداى جل جلاله په نعمت سره دى د تاوان څخه د جنايت نه خلاصېږي، او امام اعظم رحمة الله عليه وايي نوى غاښ چي شين سو د جاني جنايت نيست او نابود سو نو تاوان يې نسته، لكه سړى چي د كوچني غاښ وروكاږي او د هغه پر ځاى د كوچني بل غاښ راسي چي په دې صورت كي تاوان د غاښ بالاجماع نسته، هكذا فى الجوهره وفيه تامل، فتامل.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن شج رجلا فالتجمت الجراحة ولم يبق لها اثر ونبت الشعر سقط الارش عند ابی حنيفة رحمه الله ﴾ او كه چا تپي كي يو سړی او هغه ټپ جوړ سو او هيڅ اثر د ټپ پاته نسو او در هغه وېښتان هم راشنه سوه نو تاوان ساقط سو په نېز د امام اعظم رحمه الله ولي هغه اثر د ټپ چي عيب د موضع الجرح وو چي هغه موجب د تاوان وو د مابين څخه ولاړي.

﴿وقال ابو يوسف رحمه الله عليه ارش الالم﴾ او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي پر جاني تاوان د خوږېدو د مجروح لازم دي، او هغه حكومت د عدل دي، كذا فی الهدايه.

﴿وقال محمد رحمه الله عليه اجرة الطبيب﴾ او امام محمد رحمه الله وايي چي پر جاني مزدوري د طبيب لازم ده يعني د ډاکټر، او داغه رنګه ثمن او بيعه د دوا ولي چي دا دوه تاوانه ومجروح ته په سبب د جارح وروړسېده نو تاوان به يې هم دی وركوي، هدايه.

قال ﴿ومن جرح رجلا جراحة لم يقصص منه حتى يبرئ﴾ او كه چا تپي كړی يو سړی په ټپ سره يعني هر ټپ چي وي نو قصاص دې نه اخسته كېږي د جارح څخه تر هغوړ پوري چي ټپ جوړېږي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي سمدستي دي قصاص څندي واخلي ولي چي سبب د قصاص چي ټپ دي فی الحال موجود سو، نو وجه د ځنډولو د قصاص هيڅ نسته، موږ نقلا وايو چي عليه السلام د ټپو په باره كي يو كال وركاوه، او عقلا دا وايو چي د ټپ درك فی الحال نه معلومېږي چي

جوړ به سي او كه به ومرګ ته د مجروح مفضي.سي چي قتل نفس به ځندي جوړ سي چي جارح به پر قصاص سي نو چي جوړ سي قصاص الجرح به فقط ځندي واخسته سي، هذا حاصل مافی الهدايه.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ومن قطع يد رجل خطاء ثم قتل خطاء قبل البرء فعليه الدية وسقط ارش اليد﴾ او كه چا پرې كړى لاس د يو سړي په خطاء سره، او بيا يې مړ هم كړى په قتل خطاء سره د مخه تر جوړېدو د لاس نو پر قاطع قاتل باندي پوره ديت دي يعني ديت كامله لازم دي، او تاوان د پرې كولو د لاس ساقط دي، ولي چي قتل او قطع د يو جنس څخه دي يعني خطاءً دي، او ديت كامله خو عوض د بدن د ټولو اجزاؤ په ګڼون دی نو ځكه ديت د جزء په ديت كي د كل داخل دي.

قال ﴿وكل عمد سقط فيه القصاص بشبهة فالدية فی مال القاتل﴾ او هر قتل وغيره چي قصاص پكښې ساقط سي په يوه شبه سره لكه پلار چي زوي مړ كړي په قصد سره، نو ديت د قتل يې په مال كي د قاتل دي يعني پر عاقه نه دي، ولي چي ابن عباس رضي الله عنهما د نبي عليه السلام څخه روايت كړي دي چي وايي، لا يعقل العاقلة عمدا لاصلحا ولا اعترافا، كذا فی مجمع الانهر.

قال ﴿وكل ارش وجب بالصلح والاقرار فهو فی مال القاتل﴾ او هر تاوان چي لازم سي په صلح سره او يا په اقرار سره هغه تاوان په مال كي د قاتل دي يعني پر عاقله نه دي.

قال ﴿واذا قتل الاب ابنه عمداً فالدية فى ماله فى ثلث سنين﴾ او كه وواژه پلار زوي په قصد سره نو ديت د زوي د پلار په مال كي دي په درې كله كي.

تشريح:- ددې قتل حكم خو د هغه قانون كلي څخه يعنې، وكل عمد سقط آه" معلوم سو كما مر نو په بيرته راګرځېدو كي څه غرض دي؟

جواب:- په راګرځېدو كي احتراز دي د مذهب څخه د امام شافعي رحمه الله چي دی وايي چي په مذكوره صورت كي پر پلار پوره ديت لازم دي، والدلائل المذهبين فى الشروح.

قال ﴿وكل جناية اعترف بها الجانى فهى فى ماله ولا يصدق على عاقلته﴾ او هر جنايت چي په هغه سره اقرار وكړي جنايت كونكي يعنې شاهدان نه وي نو د هغه جنايت ارش يا ديت په مال كي د جاني دي، ولي د سړي اقرار پر خپل ځان باندي صحيح دي او تصديق دده نه كېږي پر عاقله يعني ديت وغيره پر عاقله نسته ولي دده اقرار پر هغو حجت نه دي، او د امير المؤمنين عمر رضي الله عنه څخه روايت داسي موجود دي، لايعقل العاقلة صلحاً ولا اعترافاً.

قال﴿وعمد الصبى والمجنون خطاء وفيه الدية على العاقلة﴾ او قصد د كوچني او لېوني خطاء ده يعنې حكماً او په عمد كي ديت لازم دي پر عاقله ولي مدار د قصد پر علم دي او مدار د علم پر عقل دي، نو مجنون خو عديم العقل دي او كوچنی قاصر العقل دي، كما

يدل عليه عدم التكليف للصبى بالاحكام الشرعية" او داهم زموږ مذهب دي، ولي دوي دوه قصد صحيح نه لري، اما المجنون فلانه روى چي يو لېوني توره په لاس پر يو سړي حمله وکړه او مړ يې کړي موضوع چي وحضور ته د امير المؤمنين علي ﷺ مرافعه سوه هغه يې ديت پر عاقله وګرځاوه، او صحابه ﷺ موجود وه چا يې ترديد نه وکړی، وقال ﷺ عمده وخطائه سواء" واما الصبى چونکه بالغ چي په خطاء قتل وکړي دی شريعت مطهره مستحق د تخفيف ګرځولی دي يعني چي ديت يې پر عاقله مقرر کړي دي په سبب د عذر د خطاء، نو کوچنی چي محل د رحمت دي او عذر يې د قصور العقل يې تر بالغ خاطي بالا دي ولي د تخفيف وړ نه دي يعني چي ديت دې پر عاقله وي، وهذا حاصل مافى مجمع الانهر مع الزياده.

فائده ضروريه:- دغه لېوني يا کوچني که خپل پلار مثلا مړ کي د ميراث څخه د پلار نه دي محرومه ولي چي حرمان الميراث خو عقوبت دي او دوي اهل د عقوبت نه دي، جوهره.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن حفر بيراً فى طريق المسلمين او وضع حجرا فتلف بذالک انسان فديته على عاقلته وان تلف به بهيمة فضمانها فى ماله﴾ او که چا وکينی څاه په لاره کي د مسلمانانو او يا يې يوه ډبره کښېښول په لاره کي، نو هلاك سو په دې څاه سره او يا په دې ډبره سره يو سړی نو ديت د هغه پر عاقلة د حافر يا واضع الحجر دي، ولي دا قتل شبه خطاء دي نو عاقله به يې تاوان

ورکوي، او که تلف سوه یعني هلاك سوه په دغه څاه کي او یا په دغه ډبره سره د یو چا حیوان نو تاوان د هغه بهیمې دده په مال کي دي، ولي چي شرعا پر عاقله باندي مالي تاوانونه نسته.

فائده:- پر قاتل مذکوره کفاره نسته ولي کفاره خو پر قاتل وي او حافر البير خو قاتل نه دي بلکه سبب محض دي دليل يې دادي چي کاهي پس له مرګه د حافر البير او يا واضع الحجر يو څوك ودغه څاه ته ولوېږي او يا ددغه ډبري سره ټکر سي او مړ سي نو پس له مرګه يي څرنګه پر قاتل کفاره لازمه سي.

فائده:- دا قاتل مذکوره د ميراثه څخه د مقتول محروم کېږي هم نه ولي چي قاتل نه دي او حرمان الميراث خو په قتل پوري مربوط دي، کذا فی الجوهره.

قال ﴿ومن اشرع فی الطريق روشنا او ميزابا فسقط على انسان فعطبه فالدية على عاقلته﴾ او که چا راويستې روښنايانې او يايې ناوه لاري ته راويسته او هغه روشن او ميزاب پر يو چا راشوه سوه او هغه يې مړ کړي نو ديت پر عاقله د صاحب الدار دي، ولي چي ده هوا د لاري مشغوله کړه او هغه سبب د تلف وګرځېده نو دا سبب د ضمان دي، هدايه.

لغوي تشريح:- چي روشن هغه پيك بولي چي د بامه څخه يې راوباسي چي سړی پر تېرېږي، کذا فی المغرب" او بعض فقهاء او اهل لغت وايي

چي روښن هغه دوه لرګي دي چي د دوو بامو تر منځ چا ايښي وي چي د
يوه بام څخه بل بام ته پر تېرېږي، كذا فى الكفايه.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا كفارة على حافر البير وواضع الحجر﴾
او كفاره يعنې د قتل خطاء نسته پر حافر البير څاه كښونكې باندي، او
ډبره ايښوونكي باندي، لما مر فى القاعدة المنقولة عن الجوهره.

﴿ومن حفر بيرا فى ملكه فعطب به انسان لم يضمن﴾ او كه
چا كينلى وو څاه په خپل ملك كي كه سراى وي او كه نوره مځكه دده
وي، نو يو سړى ورولوېدى او ﭘكښي مړ سو تاوان يې نسته، يعني نه پر
ده او نه پر عاقله دده، ولي چي سړي لره حق ددې سته چي په خپل ملك
كي تصرف وكړي، بمايشاء" او دى په دې تصرف كي متعدي على الغير
نه بلل كېږي، كذا فى الجوهره.

قال المصنف رحمه الله ﴿والراكب ضامن لما اوطئت الدابة وما
اصابته بيدها او كدمته ولا يضمن ما نفحت برجلها او ذنبها﴾
او سپور پر يوه حيوان لكه خر، آس وغيره ضامن دي يعني تاوان به
وركوي د هغه شي چي پاى ماله يې كړي دابه يعني تر پښو يې لاندي
كړي، او يا په غاښو يو شى تلف كړي او يا د مخ په پښو يو شى تلف
كړي، او نه دي ضامن راكب د هغه شي چي دابه يې د شا په پښو په لغت
ووهي، او يا يې په لكۍ ووهي.

پوهنه: - چي صاحب المجمع والهدايه ددې ځاى تحقيق داسي
كړي دي چي دا حكم د ضمان هلته پر راكب الدابه باندي جاري كېږي

چې دی دابه د عامه وو خاګو په لار کې تېروي او دی پر سپور وي، او که يې دابه په خپل ملك كې تېرول دی پر سپور وو او دچا شی يې ورتلف کړي بيا پر ده ضمان نسته ولې دی د خپل ملك په تصرف کې متعدي نه ګڼل کېږي کمامر. او که تېرېدل په عامه لار کې وي بيا په تلف د دابې دی متعدی بولل کېږي.

قاله صاحب الهداية والاصل فيه" يعنې قانون کلي د تېرېدو په عام سړك يا په عامه لار کې دادي چې مرور يعنې تېرېدل په لاره کې د مسلمانانو هر چا ته مباح دي مګر په شرط د سلامتې، ولې دا مرور د هر سړي په خپل حق دي د يوې وجهې چې دی هم شريك ددغې لارې دي، او دا مرور تصرف په حق کې د غير دي په بله وجه ولې چې په دې کوځه کې خو دده سره نور مسلمانان شريك دي، نو فيصله داده چې دغه مرور و هر چا ته مباح دي په شرط د سلامت د نورو مسلمانانو د سرو او د مالو د آفت څخه د مرور، لکن هغه آفتونه چې راکب ځان ځنې ساتلای سي لکه تر پښو لاندې کول د دابې يو شی او د مخ په پښو ضرر رسول د چا وشي ته،او يه په غاښو ضرر رسول ولې چې د راکب په قوسه پوره ده چې د دابې مخ واړه وي د هغه شي څخه چې په لاره کې وي، او هغه ضرر چې راکب ځان نه سي ځنې ساتلای مرور په هغه سره مقيد نه دي لکه د شا په لغته وهل او يا په لکۍ وهل چې راکب خو هغه نه ويني چې ځان د هغه څخه وساتي.

**درويش وايي:-** چې په اوسنۍ زمانه کې موټران چې په طرق عامه وو کې يا سړکانو کې خلك ځغلوي نو موټروان لکه راکب الدابه داسي

دي نو د موټر د مخ خوا لکه د دابې د مخ پښې په حکم کي د وجوب الضمان، او د شا خوا د موټر لکه د شا پښې د دابې داسي دي د عدم وجوب ضمان المتلفات، فتدبر فيه.

مسئله:- دا مذکوره احکام په حال کي د مرور او تګ د دابې دي او که راکب په لويه لاره کي دابه دروليې وه نو په هر حال کي دى ضامن دي يعني که د مخ په پښو شى ووهي او که د شا په پښو شى تلف کړي، ولي راکب په دې درولو کي د دابې په لويه لاره کي متعدي دي چي د عامو خلکو لاره يې بنده کړي ده، جوهره.

قال المصنف رحمه الله ﴿فان راثت او بالت فى الطريق فعطب به انسان لم يضمن﴾ او که دابې په حالت کي د رفتار خوشايي وکړه او يا يې بولي وکړي په لويه لاره کي، نو په هغه خوشايو يا بولو سره يو سړى هلاك سو مثلا پښې يې پر وښوېدې او غوځار سونو هلاك سو ضمان يې پر راکب الدابه نسته ولي چي بولي او خوشايي خو د ضرورياتو څخه د تګ د دابې دي نو راکب ددې څخه اعتراض نه سي کولاى.

مسئله:- که سړي يعني راکب دابه د بولو يا خوشايو کولو د پاره درولې وي او د بل وشي ته ضرر ورسوي هم يې تاوان نسته، ولي دا درول د ضرورياتو څخه د سير د دابې دي ددې سببه چي بعض حيوانات چي وه يې نه دروې بولي نه کوي لکه خر، آس، غاتره وغيره.

قال ﴿ والسائق ضامن لما اصابت بيدها او رجلها والقائد ضامن لما اصابت بيدها دون رجلها ﴾ او شړونكي د دابې ضامن دي د هغه ضرر كه يې د مخ په پښو دابه ورسوي، كه يې د شا په پښو، او كشونكي د دابې ضامن دي د هغه ضرر چي د مخ په پښو يې دابه ورسوي نه د شا په پښو

پوهه :- چي ماذكره القدوري مذهب دي د بعضې مشائخو رحمة الله عليه او وجه د توپير د شړونكي د دابې او سپور د دابې داده چي شړونكي خو د دابې د مخ پښې او د شا پښې دواړي ويني نو د ضرر څخه د دواړو خواو د دابې د ضرر څخه ځان ساتلاى سي، او سپور پر دابه خو د مخ پښې ددابې ويني نو د مخ د پښو د ضرر تاوان پر لازم دي او چونكه قاعد د شا پښې نهويني نو تاوان يې هم نسته.

قال صاحب الهدايه رحمة الله عليه چي اكثر مشائخ پر دې مذهب دي چي كه څه هم سائق د مخ پښې د دابې ويني لكن د ضرر څخه د مخ د پښو دى ځان نه سي ساتلاى كما هو الظاهر، قال صاحب الجوهره وهو الاصح.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ ومن قاد قطاراً فهو ضامن لما اوطاء فان كان معه سائق فالظمان عليهما ﴾ او كه چا كشاوه يو قطار مثلا د اوښانو نو دى ضامن دي د هغه شي چي اوښان يې تر پښو لاندي كړي، او كه د قطار سره سائق هم وو يعنې د شا د خوا شړونكي نو ضمان د متلف شي پر دواړو دي يعني په شراكت سره، ولې دوي دواړه په تلف كي د شي سره شريكان دي.

پوهنه:- چي اول د قطار، منځ د قطار او آخر د قطار په مذكوره حكم كي سره برابر دي.

مسئله:- كه دغه قطار د اوښانو يو سړی تر پښو لاندي كړي او مړ يې كړي ديت لازم دي مګر پر عاقله د قائد چي پر اوښ سپور وي يوازي كه سائق نه وو ورسره، او كه سائق ورسره وو پر عاقله د سائق او قائد دواړو په مشتركه ډول ديت لازم دي، كذا فى الفتح.

قال ﴿واذا جنى العبد جناية خطاء﴾ او كه جنايت وكړی مريي د يو چا په خطاء سره.

پوهنه:- چي قيد د خطاء صرف قتل النفس كي فائده لري ولي چي مريي كه قتل عمد وكړي دی پر قصاصېږي كه مقتول حر وي كه غلام، او په مادون النفس كي مثلا مريي د بل حر يا دبل مريي لاس وريږي كړي خطاءً او عمداً سره برابر دي، ولي قصاص په مادون النفس كي په منځ كي د حر او د عبد او په منځ كي د عبدينو شرعا نسته كما مر بلكه په مادون النفس كي مال لازم دي، او داهم كه قاتل عاقل بالغ وو، او كه كوچنی وو بيانو مطلقاً مال لازم دي، لما مر ان عمد الصبى وخطائه سواء.

قال ﴿قيل لمولاه اما ان تدفعه بها او تفديه فان دفعه ملكه ولى الجناية وان فداه فداه بارشها﴾ نو دي وويل سي وبادار ته د مريي چي يا به ته وركوي خپل مريي د جنايت په تاوان كي يعني د قريبانو ته د هغو او يا به فديه د جنايت د مريي وركوي، نوكه مولى

مريي وركړى نو ولي د جنايت د هغه مريي مالك وګرځېدى او كه يې فديه وركوله نو فديه دي وركړي په قدر د جنايت د مريي د ليل يې دادي چې مريي خو مال نه لري او نه عاقله لري نو دده رقبه په ځاى كي د تاوان د جنايت ولاړه ده، ولي چې وينه د مجنى عليه خو لغو نه سي كېدلاى، نو اختيار د مولى دى يابه مريي وركوي او كه مريي ډېر ګران وو بيا دي تاوان د جنايت وركړي، بالغة مابلغ.

﴿فائدة﴾ :- كه يې مريي وركاوه دستي به يې وركوي ولي چې مده ايښوول خو په اديانو كي وي او اعيانو ذواتو كي مده ايښوول شرعا باطله ده، او كه يې فديه وركول هم به يې فى الحال وركوي ولي چي دا فديه بدل د مريي ده نو چي مريي وركوي فى الحال لازم دي نو بدل وركول يې هم فى الحال واجب دي، وهذا حاصل ما فى مجمع الانهر مع زيادة من العبد العاصى.

قال ﴿فان عاد فجنى كان حكم الجناية الثانية حكم الاولى﴾

او كه مريي راګرځېدى يعنې مولى يې فديه وركړه، نو هغه مريي بل جنايت وكړى نو حكم د دوهم جنايت حكم د اول جنايت دي، يعنې يا دفعه د مريي په جنايت ثاني كي او يا ارش د جنايت ثاني وركول ولي بادار چي د اول جنايت بدل مال وركړي نو مريي د جنايت څخه پاك سو نو ګويا ده جنايت نه دي كړي، نو دا دوهم جنايت ګويا دده اول جنايت دي، كذا فى الفتح والعنايه.

قال ﴿فان جنا جنايتين قيل لمولاه اما ان تدفعه الى ولى الجنايتين يقتسمانه على قدر حقوقهما واما ان تفديه بارش كل واحدى منهما﴾ او که دوه جنایته وکړه مریي نو بادار ته دي وويل سي چي یا به مریي ورکوي وولي ته د دواړو جنایاتو او هغه به يې سره وېشي پر اندازه د حقوق خپل يعني په اندازه د جنايت د مريي د دوي پر قريب باندي، او یا به بادار فدیه او تاوان د هر جنایت ورکوي. ولي چي دا دواړه جنایته په رقبه پوري د مريي مربوط دي، او دا دوه تعلق د دوو جنایاتو په یوه رقبه پوري يو د بل ضد نه دي لکه پر عبد ماذون چي د يوه سړي زر روپۍ باندي وي او د بل سړي هم زر روپۍ پر باندي وي.

قال ﴿وان اعتقه المولى وهو لايعلم بالجناية ضمن المولى الاقل من قيمته ومن ارشها وان باعه او اعتقه بعد العلم بالجناية وجب عليه الارش﴾ او که مولى ازاد کی هغه جاني مريي او حال داوو چي دی په جنایت نه وو خبر، نو مولى ضامن دي د هغه کم شي چي یا قیمت د مريي دي او يا تاوان د جنایت دي ولي په دې عتق دی معذور دي لعدم العلم بالجنايې فلايكون مختارا للفداء، او که يې خرڅ کړي هغه جاني مريي او يا يې ازاد کړي پسله علمه څخه په جنایت د مريي نو پرده ارش د جنایت لازم دي، ولي مولى چي په جنایت خبر هم وو او تصرف لازم يې په مريي کي وکی چي بيعه او يا عتق دي نو دا يقين سو چي دده ارش خوښ دي بالاجماع.

قال المصنف رحمه الله ﴿واذا جنى المدبر او ام الولد جناية ضمن المولى الاقل من قيمته ومن ارشها﴾ او كه جنايت وكړى مدبر مريي د يو چا، يعنې چي مولى ورته ويلي وي چي ته پسله مرګه زما آزاد يې، او يا ام الولد مينځي جنايت وكي، چي د مولى څخه لنګه وه، يعني چي دواړه نقل د ملك مولى وملك ته د بل چا شرعا ناجائز دي هبةً وبيعاً وغير ذالك، نو مولى ضامن دي كم شى د قيمت د مدبر او ام الولد او د تاوان د جنايت ولي چي وركړه د مدبر او ام الولد خو وولي ته د جنايت ممكن نه ده لما مر لعدم صحة نقلهما من ملك الى ملك" نوخود مخير دي په كم قيمت وركولو كي او يا په كم ارش وركولو، يعنې كه ارش د جنايت ډېر وو تر قيمت ولي د جنايت بالابد حق نه لري.

پوښتنه:- په دې موضوع ولي مولى ته اختيار نه وركوي چي كه ته قيمت وركوې او كه د جنايت ارش وركوې؟

ځواب:- دلته خو قيمت هم مال دي او ارش هم مال دي، ولا فائدة فى تخيير المولى بينهما لانه الخيار الاقل لامحالة فاوجبنا عليه الاقل منهما من اول الامر، بخلاف العبد الجانى فى المسئلة المقدمة لان العبد عين والارش مال وقد يكون المولى راغبا فى عين العبد وان كان قيمته اقل من الارش فيختار الارش وان كان اكثر من قيمته العبد رغبته فى العبد فيفيد التخير فى تلک المسئلة فافهم.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿فان جنى جناية اخرى وقد دفع المولى قيمته الى الولي الاول بقضاء فلا شئ عليه ويتبع ولى الجناية الثانية ولى الجناية الاولى فيشاركه فيما اخذ وان كان المولى دفع القيمة بغير قضاء فالولى بالخيار ان شاء اتبع المولى وان شاء اتبع ولى الجناية الاولى﴾ او كه جنايت وكړى مدبر بل جنايت او حال داوو چي بادار دده قيمت وركړى وو وولي اول ته په حكم د قاضي نو پر مولى د مدبر هيڅ شى نسته د ولي د جنايت ثاني، ولي چي مولى مجبور دي په دفعه كي د قيمت ولي چي حكم د قاضي نافذ دي، او ولي د جنايت دوهم په پسي كېږي په ولي پسي د جنايت اول چي قيمت د مدبر يې اخستى دي د مولى څخه نو ولي د جنايت ثاني شريك دي د ولي سره د جنايت اول په هغه مال كي چي ولي د جنايت اول د مولى څخه د مدبر اخستي دي، او كه چيري مولى د مدبر قيمت د مريي وركړى وو يعنې ولي ته د جنايت اول ببله قضاء د قاضي نو ولي ددوهم جنايت اختيار لري كه يې خوښه وي په بادار دي پسې سي چي زما د جنايت تاوان راكړه او كه يې خوښه وي په ولي د جنايت اول دي پسې سي، فى ما اخذ او داهم مذهب دي د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه، او ياران وايي چي په وركړه كي د مولى قيمت د مدبر وولي ته د جنايت اول د قضاء او نه قضاء فرق نسته يعنې په دواړو صورتو كي مولى خلاص دي، او ولي د جنايت ثاني به حتماً ولي د جنايت اول تېنګوي او د هغه شريك دي.

**درويش وايي**:- چي دلائل د دواړو ډلو يو اندازه طول لري لکه په هدايه، جوهره وغيرهما کي چي مذکور دي نو ځکه درويش د هغو دلائلو د راوړو څخه معذرت غواړي چي دا شرحه د ابتدائي زده کونکو د پاره ده. او هغه امامان چي په محرابو کي ولاړ وي که څه هم اکثره يې ددې شرحي څخه مستغني خونه دي لکن دوي تکبراً ځانونه مستغني بولي، والى الله المشتکى.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿**واذا مال الحائط الى طريق المسلمين فطولب صاحبه بنقضه واشهد عليه فلم ينقض فى مدة يقدر على نقضه حتى سقط ضمن ما تلف به من نفس او مال**﴾ او که کوږ سو دېوال د يو چا ولاړي ته د مسلمانانو. او طلب وکړه سو د صاحب جدار څخه د نړېدو د دېواله او شاهدان پردې مطالبه يې ودرول، نو هغه سړي دېوال ونه نړاوه په دونه وخت کي چي دى پر نړېدو هم قادر وو، حتى چي دېوال پخپله ونړېدي نو صاحب الجدار ضمامن دي د هغه شي چي د دېوال په نړېدو سره تلف سو که نفس وي او که مال وي.

**فائده**:- مطالبه د نړېدو د هغه چا شرط ده چي پر نړېدو د دېوال قادر وي، حتى که په دغه سراى کي چي دېوال يې مائل وو يو سړى په کرايه پکښي پروت وو او يا مفت پکښي اوسېدى او نورو خلکو ددې همسايه څخه مطالبه د نړېدو د دېوال وکړه، او دېوال خپله ونړېدي او نفس يا مال پکښي تلف سو، ضمان د هغه تلف نه پر مالك سته ولي د

هغه څخه خو چا مطالبه نه ده کړې، او نه پر هغه همسايه ولي چي هغه قدرت پر نړېدو نه درلودي چي دېوال خو دده نه وو.

فائده:- دېوال که عامه کوڅې ته کوږ وو نو هر څوك حق د مطالبې د نړېدو لري، لان لكل واحد حق المرور فيها" او كه خاص كوڅې ته مائل وو نو د هغې كوڅې خلكو حق د مطالبې لري نه عمومي خلك، حاصل ما فى الهدايه.

پوهه:- چي پسله طلبه خو شاهدان درول شرط د ضمان نه دي، بلكه اشتهاد صرف ددې د پاره دي چي صاحب الدار بيا منكر نه سي چي زما څخه چا طلب د نقض نه ده كړي، نو دا اشتهاد صرف احتياطي كار دي مجمع.

فائده:- امام شافعي رحمه الله ضمان پر صاحب الجدار نه وايي كه څه هم طلب څندي وسي، والدلائل فى الشروح من الطرفين.

قال ﴿ويستوى ان يطالبه بنقضه مسلم او ذمى﴾ او برابر دي په مطالبه كي د نړېدو د دېوال مسلمان او ذمي كافر، ولي حق د مرور خو ذمي لره هم سته نو حق د مطالبه د نقض الجدار هم لري حفظاً لنفسه وماله من خطر السقوط.

﴿ولو مال الى دار رجل فالمطالبته لمالک الدار خاصة﴾ او كه دېوال كوږ سوي وو د يو چا سراى ته نو حق د مطالبې د نقض صاحب الدار لره دي خاص لان ضرر السقوط متوجه اليه خاصةً، په جوهره كي وايي كه د سراى مالك په سراى كي اوسېږي او كه څوك په كرايه يا په

عاريت په سرای کي اوسيږي يعنې تروله حق د مطالبې د نقض لري، لان دفع الضرر من كل هولاء واجب على صاحب الجدار المائل، مع زياده.

قال ﴿واذا اصطدم فارسان فماتا فعلى عاقلة كل واحد منهما دية الآخر﴾ او كه دوه د آسانو سپاره يو د بله سره ټكر سوه او دواړه مړه سوه نو پر عاقله د هر يوه ديت د هغه بل مړي لازم دي، دا هم زموږ مذهب دي، او امام زفر او امام شافعي رحمه الله وايي چي پر عاقله د هر يوه نيم ديت د هغه بل مړي دي، والدلائل للفريقن فى الشروح المطلوله.

قال المصنف رحمه الله ﴿واذا قتل رجل عبداً خطاءً فعليه قيمته ولاتزاد على عشرة الاف درهم فان كان قيمته عشرة الاف درهم او اكثر قضى عليه بعشرة الاف الا عشرة﴾ او كه مړ كړي يو سړي مريي يعنې د بل چا په خطاء سره، ولي كه يې په قصد مړ كړي خو قاتل پر قصاصيږي نو پر خاطي قاتل باندي قيمت د مريي لازم دي او تر لس زره به يې نه زيات وي يعنې چي ديت د حر دي، فرقا بين الحر والعبد، او دا مذهب دي د امام اعظم رحمه الله او امام محمد او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي قيمت د مريي لازم دي تر هر ځايه چي رسيږي او په دې سره ائمه ثلاثه هم قائله دي، لما روى عن عمر وعلى و ابن عمر رضي الله عنهم چي دوي واجب بولي قيمت د مريي بالغةً مابلغ، او دليل د طرفينو رحمه الله هغه اثر د ابن مسعود رضي الله عنه لكه په متن كي چي ذكر سو، او كه وو قيمت د

مریي مقتول لس زره روپۍ او یا تر لسو زرو بالانو پر قاتل باندي لس زره روپۍ او په لس درهمه کم حکم دي قاضي وکړي.

قال المصنف رحمه الله ﴿وفی الامة اذا زادت قیمتها علی الدیة یجب خمسة الاف الا عشرة﴾ او په مینځه کي یعني چي یو څوك د بل مینځه په خطاء سره مړه کړی او قیمت ددې پر دیت ددې یعني چي نیسي دیت د مریي دی، نو واجبه ده پر قاتل پنځه زره روپۍ په لس روپۍ کمي.

قال ﴿وفی ید العبد نصف قیمته ولا یزاد علی خمسة الاف الا خمسة﴾ او په لاس کي د مریي چي څوك یې وریې کړي په خطاء سره نیمی قیمت د مریي دي او نه دي بالا کېږي تر پنځه زره په پنځه روپۍ کمي ولي چي په لاس کي د انسان نیمی دیت دي که حر وي او که عبد نو چي په کل دیت کي د مریي لس روپۍ کمي دي چي قیمت یې تر دیت ډېر وي یا مساوي نو په دیت کي د لاس د مریي چي نصف قیمت یې بالاترنصف دیت وي پنځه روپۍ به کمي وي قیاساً للجزء علی الکل.

قال المصنف رحمه الله ﴿وکل ما یقدر من دیة الحر فهو مقدر من قیمة العبد﴾ او هره اندازه مال چي ددیت څخه د حر اندازه کېږي نو هغه قدر اندازه کېږي د قیمت د مریي یعني که په حر کي پوره دیت وو په عبد کي هم پوره قیمت دي الا اذا زاد کما مر او که په حر کي نیم دیت

وو په مريي کي نيم قيمت دي، والتفصيل كما مر فى صورتى المساوات والزيادة.

قال ﴿واذا ضرب رجل بطن امرئة فالقت جنينا ميتا فعليه غرة والغرة نصف عشر الدية﴾ او که ووهله يو سړي يوه ښځه يعنې چي حامله وه پر نس باندي نو هغې ښځي وغورځاوه کوچنى يا نر او يا ښځه لکن مړ نو پر ضارب باندي يو مريي يا يوه مينځه لازمه ده او غره چي دي يعنې قيمت د غره نيمى د لسمه حصې د ديت دي يعنې پنځه سوه روپۍ او امام مالك رحمه الله او امام شافعي رحمه الله شپږ سوه روپۍ لازمي بولي، وقد جاء فى الحديث الصحيح انه عليه السلام قال فى الجنين غرة عبد او امة قيمته خمسمائة ويروى او خمس مئة وهذا الحديث حجة على مالك والشافعى رحمه الله كذا فى الهدايه.

**فائده:** - چي غره اقل ته د شي وايي او اول ته د شي هم وايي نو ځکه اول ته د مياشتي غره وايي نو چونکه د جنين ديت اقل د دياتو دي نو ځکه يې غره بولي، مجمع الانهر.

قال ﴿فان القته حيا ثم مات ففيه دية كاملة﴾ او که هغې پر نس وهل سوي ښځي کوچنى ژوندى وزېږاوه او بيا مړ سو يعنې ظاهراً سبب يې هغه ضرب د مور وو، نو په دې کوچني کي کامل ديت دي ولي چي ضارب ژوندى انسان تلف کي.

قال ﴿وان القته ميتا ثم ماتت الام فعليه دية وغيرة﴾ او که يې کوچنى مړ وزېږاوه او بيا يې مور هم پسي مړه سوه نو پر ضارب باندي

دیت کامله د مور دی، او يو مريي يا مينځه پر لازمه ده او په صحيح حديث کي ثابته ده چي رسول کريم ﷺ په دغسي موضوع کي حکم د ديت او د غري وکړي.

قال ﴿وان ماتت ثم القته ميتا فلا شيئ فى الجنين﴾ او که ښځه د مخه مړه سوه او بيا يې وروسته مړ کوچنی وزېږاوه، نو هيڅ شی نسته په جنين کي يعني صرف د مور ديت يې پر ضارب لازم دي، او امام شافعي رحمه الله غره هم پر لازمه بولي د جنين په باره کي دی وايي چي ضاهراً دادي چي کوچنی په اثر د ضرب مړ سوی دي، موږ وايو نعم چي ممکنه ده چي کوچنی دي په وجه د اثر د ضرب مړ وي، او دا هم ممکنه ده مور د مرګ په سبب د ي کوچنی مړ سوي وي ولي چي کوچنی د مور د مرګ په سبب په رحم کي خفه کېږي ولي دده ساه کښل د مور د ساه په کښلو سره دي او ديت خو په شك نه لازمېږي، حاصل مافی الهدايه.

قال المصنف رحمه الله ﴿وما يجب فى الجنين موروث عنه﴾ او هغه شی چي په جنين کي لازم دي يعني نصف عشر الدية هغه د جنين ميراث خو روته ميراث دي ولي هغه بدل دده د نفس دي نو حکم يې د نورو دياتو په مثل دي يعني چيپر ورثه وو تقسيم کېږي.

﴿مسئله﴾:- ضارب که د جنين قريب وارث هم وي لکن هغه په دغه ديت کي برخه نه لري ولي چي دی پخپل دغه فعل سره قاتل ظلماً د جنين دي ولا ميراث للقاتل، مجمع الانهر، سراجي.

قال ﴿وفى جنين الامة اذا كان ذكرا نصف عشر قيمته لو كان حيا وعشر قيمته ان كان انثى﴾ او په جنين كي د مينځي يعني چي مړ پيدا سي نيمايي د لسمي حصې د قيمت دده دي يعني مريي كه چېري ژوندى وي. او لسمه د قيمت د ه كه چېري ښځه وي.

﴿ولا كفارة فى الجنين﴾ او كفاره نسته په جنين كي، ولي كفاره چي تاكل سوې ده په نفوس كامله كي ده او جنين خو ناقص دي، ويدل عليه نقصان ديته" وايضاً كفاره خو په قتل كي لازمېږي او د جنين ژوند نه دي معلوم، او امام شافعي رحمه الله وايي كفاره پكښې ده لكن زموږ په مذهب كي سره د عدم لزوم په كفاره كي احتياطاً او تطوعاً كفاره وركړه ښه كار دي، ح، ج.

قال ﴿والكفارة فى شبه العمد والخطاء عتق رقبة مؤمنة فان لم يجد فصيام شهرين متتابعين ولا يجزئى فيه الاطعام﴾

او كفاره په شبه العمد او په خطاء كي ازادول دي د مريي يامينځي چي مسلمان وي، او كه يې رقبه نه درلوده بيا دوې مياشتي روژې پرله پسې يې كفاره دي، او په طعام وركولو سره يې چاره نه كېږي، او امام شافعي رحمه الله وايي كه يې پر روژو قدرت نه درلودي بيا به كفاره د طعام وركوي قياساً على كفارة الصوم، موږ وايو چي خداى جل جلاله كفاره په قرآن كريم كي كفاره د قتل ذكر كړې ده چي عتق او روژې دي او اطعام يې نه

دي ذکر کړي، او اثبات د کفاراتو په قياس سره نه دي روا ولي چي زيادت پر نص قرآني لازميږي.

**تتمه غريبه**:- درويش وايي چي په بعض کتابو کي د تاريخ راغلي دي چي فقيه ابو جعفر الطحاوي رحمه الله چي اعلم د ناسو په مذهب د امام اعظم رحمه الله منل سوي شخصيت دي په احنافو کي او دده پلار او تبر بوله شافعي المذهب وه، او دی هم په ابدائي حال کي د تعليم شافعي المذهب وو، لکن په هغه مسئله کي چي ښځه په حمل کي مړه سي او حمل يې فعلاً ژوندی وي نو په داسي موضوع کي د امام اعظم رحمه الله مذهب دادي چي د مور نس دستي ور اپرېشن کي او کوچنی دي څندي راوکاږي، عسى ان يبقيه الله حيا" او امام شافعي رحمه الله وايي چي اپرېشن دي نه ورکوي يو کړی دې پرېږدي کوچنی خپله په اختناق مري، او د فقيه ابو جعفر پلار زوي نه درلودي ډېر ورته تږی وو، نو څه وخت چي فقيه ابو جعفر د مور په حمل کي وو مور يې د وضع الحمل په وخت کي مړه سوه پلار يې د ډېره حرصه خلاف د خپل مذهب د ښځي نس ورڅيري کړي او فقيه ابو جعفر يې ژوندی څندي راوه ايستی رفته رفته خدای جل جلاله ودې کوچني ته ورډ ژوند ورکي حتی چي په طلب د علم اخته سو او ښاغلي عالم دين څندي جوړ سو او مذهب يې هم د امام شافعي رحمه الله چلاوه، چونکه دی خپل پلار په ماجرې خبر کړی وو نو يو وخت فقيه ابو جعفر پر هغه مسئله اختلافيه پيښ سو يعني د مور د نس څيرل او نه څيرل، نو د ځان سره يې فکر وواهه چي دغه زما حيات او ژوند او علم خو په سبب د اختيار زما د پلار مذهب لره د امام اعظم رحمه الله منځ ته

راغلي، نو يې مذهب د امام شافعي رحمه الله پرېښوي او د امام اعظم رحمه الله مذهب يې اختيار کړي، والله اعلم بحقيقة الحال.

## ﴿باب القسامة﴾

دا باب په بيان کي د احکامو د قسامت دي

**تعريف**:- چي قسامة اسم مصدر دي، يعني په ځاى کي د مصدر مستعملېږي او اصل مصدر اقسام دي د افعال د بابه معنا يې قسم ورکول دي وچاته دا خو معنا لغوي وه، او په شرعه شريفه کي يې معنا هغه ده چي قدوري به يې ذکر کړي.

**فائده**:- دلائل د مشروعيت د قسامت هغه احاديث شريفه دي چي په صحاح سته وو کي ذکر سوي دي او په هدايه او په شرحو کي د هدايه هم بالتفصيل ذکر سوي دي.

**فائده**:- د قسمامت حکمت او فلسفه داده چي هر محله والا به داسي سړي چي ورته کارکوي په محله او قريه کي به پرېږدي، او وينې د مسلمانانو به هدر او لغو نه ځي، اوشرط د قسامت دادي چي په مړي کي به اثر د قتل وي ولي که اثر د قتل نه وي نو امکان لري چي پر دغه مړي به د زړه دوره راغلې وي، اويا اپنديسي وو او پنډ کس به يې چاودلي وي، او د انسداد الامعاء په سبب به مړوي، او په موجوده وخت کي امکان لري چي دا مړي دي يو ضعيف هيرويني وو چي هيروئن يې خلاص سوي وي او چپه سوي وي او آخر مړسي، او نور ورته اسباب د مرګ مفاجات هم سته کما لا يخفى.

[illegible]:- که ولي د مړي دعوه د قتل عمد کوله پر محلي والوو باندي نو حتماً به پنځوس قسمه محله والا وربوره کوي، او که يې دعوه د قتل کوله نو په نه کول د بعض اهل محله يا ټولو ديت پر اهل محله باندي لازم ګرځي او قسم ته دې نه مجبوره کوي، كذا فى كتب الفقه الحنفى.

قال المصنف رحمه الله ﴿واذا وجد القتيل﴾ يعني يو مړي چي په هغه کي اثر د قتل وو ﴿فى محلة لايعلم من قتله﴾ يعني که پيدا کړه سو يو مړی په يوه محله کي د ښار او يا په يوه قريه کي د خارج المصر او دا نه معلوميده چي چا به وژلی وي.

﴿يستحلف خمسون رجلا منهم﴾ نو قسم دې ورکړه سي و پنځوسو کسانو ته د محلې يعني قاضي د اسلامي حکومت دې قسم ورکړي. ﴿يتخير هم الولى﴾ او دا پنځوس کسه به خوښه وي ولي د مړي، يعني د ولي خوښه ده که فاسقان او ځوانان د محلې والا څخه د قسم اخيستو د پاره ټاکي که د ولي تهمت پر دغو کسانو وو، او که صالحان ديندار خلک د محلې ټاکي ولي چي ديندار او صالح سړی د دروغو د قسم څخه ډډه کوي نو که قاتل ورمعلوم وي هغه رسوا کوي او ناحقه قسم نه اخلي، بخلاف الفساق، او که ولي يو ړوند د اهل محلې او يا محدود فى القذف مختاره کړی ورته روا ده ولي دا خو يمين دي شاهدي خو نه ده، او دا پنځوس کسه به داسي قسم اخلي،

﴿بالله ماقتلناه ولا علمناله قاتلا﴾ قسم په نامه دخدای جل جلاله دي موږ نه دي وژلی دغه مقتول، او نه موږ خبر يو په قاتل دده.

تشریح:- چې مصنف رحمه الله د ټولو اهل محله قسم په صیغه د متکلم مع الغیر راوړی لکن په وخت قسم د یوه یوه به داسي قسم ورکوي، بالله ما قتلت ولااعلم بقاتله"

او د انفرادي قسم په وخت کي به دانه ورته وایي بالله ماقتلناه، ولي ودي سي چې قاتل د مړي دي هم دا غسي قسم واخلي بالله ما قتلناه، یعني موږ اهل محله په اتفاق نه دي وژلی یعني ما یوازي مړ کړی، جوهره.

قال المصنف رحمه الله ﴿فاذا حلفوا قضی علی اهل المحلة بالدیة﴾ نو که دا پنځوس کسانو قسم واخستی نو دي حکم وکړه سي یعني د حاکم الوقت د خوا پر اهل د هغې محلې په دیت سره، ای علی عاقلة اهل المحلة، نهایه" او دا دیت به هم په داغه کال کي ورکوي لکه د قتل خطاء دیت بل هذه اولی، لان عذر هؤلاء اعلی من مباشر القتل بالخطاء فلما کان هی فی ثلث سنین فهذا اولی، مبسوط.

حکی ابن عباس رضی الله عنه کتب النبی ﷺ واهل خیبر ته چې دا مسلمان مړی ستاسي په قریه کي پیدا سوي دي نو تاسي به څنګه ځانونه خلاصوي ددې مړي څخه؟ اهل خیبر ورته نوشته کړه چې دغسي واقعه په زمانه کي د موسی علیه السلام هم واقعه سوې وه نو خدای جل جلاله پر موسی علیه السلام امر نازل کي په باره کي د هغې واقعې، نو که ته نبي یې نو ته هم د حل لاره د خدای جل جلاله څخه سوال کړه نو نبي علیه السلام ورته نویشته کړه چې پنځوس کسه به ستاسي څخه قسم اخلي که موږ وژلی دي او یا په قاتل خبر یو فثم یغرمون الدیة، نو بني اسرائیل د خیبر ورته نویشته کړه لقد قضیت لنا بناموس ای بالوحی یعني د موسی علیه السلام د وحي معامله هم دغسي وه.

قال ﴿ولا يستحلف الولى ولا يقضى عليه بالجناية﴾ او قسم دي نه ورکول کېږي ولي ته يعنې پس لـه دې چي اهل محله پنځوس قسمه واخستـه، او امام شافعي رحمه الله وايي چي وروسته تر قسمو د اهل محلې دي بيا ولي ته قسم ورکړي نو که هغه قسم واخستي بيا دي حکم په ديت وکړي پر محلې والاوو باندي، او نه دي کېږي حکم د جنايت پر ولي باندي که څه هم قسم واخلي. زلنا قوله عليه اسلام البينة على المدعى واليمين على المدعى عليه.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان ابا واحد منهم حبس حتى يحلف وان لم يكمل اهل المحلة كررت الايمان عليهم حتى يتم خمسين يمينا﴾ او که منعه او انکار يوه سړي د اهل محله څخه وکړی يعنې د قسم څخه هغه دي بندي کړه سي، ولي دا قسم خو مستحق دي پر ده باندي په نص سره د پاره د تعظيم د وينو توېدلو او تر هغو دي بندي وي چي قسم اخلي، لکه په دين المستحق على شخص چي هغه د ورکړي څخه انکار وکړي نو هغه مديون خو بندي کېږي تر څو چي پور ورکوي، او که پوره نه کړه اهل محله پنځوس قسمه يعنې پنځوس کسه په محله کي نه وه نو دي قسم مکرر کي پر موجوده خلکو تر هغو چي پنځوس کسه پوره کېږي ولي پنځوس قسمه خو واجب بالسنت النبوي دي.

قال ﴿ولا يدخل فى القسامة صبى ولا مجنون﴾ ولي چي يمين خو د قول قسم دي او صبي او مجنون اهل د قول صحيح نه دي.

﴿ولا امرئة ولا عبد﴾ او نـه دي ښځـه او نـه مـري پـه قسـمه کـي داخلوي، ولي ښځه خو دونه دلاوري نه لري غالباً چي څوك دي مړ کړي

او یا د چا ووژلو ته دي حاضره سي، او مریي چونکه محکوم د م
دي او د هغه په خدمت کي شب وروز مصروف وي نو قتل او یا حضو
قتل ته دده هم نسبي کیدلای.

قال ﴿وان وجد میت لااثر به فلا قسامة ولا دیة﴾ او که پ
سو مړی په یوه محله کي او په ده کي اثر د قتل نه وو، یعني یا تپ
خفه کېدل او یا د لرګي د وهلو، نو نه قسامه سته او نه دیت ولي خو د
قتیل نه دي.

﴿وکذالك ان کان یسیل من انفه او دبره او فمه﴾ او داغه رنګ
قسامه او دیت نسته که د مړي تر پزه ویني بهېدلې، ولي د پزي وینه چې
رعاف یې بولي ناحقه هم ګاهي بهېږي، او یا یې تر کونه ویني بهېدلې
ولي د کوني وینه خو په اثر د خوني بواسیرو هم بهېږي ګاهي، او یا تر
خوله وینې بهېدلې ولي چي کېدلای سي چي سوداء محترقه دې قی
کړې وي.

قال ﴿فان اخرج من عینیه او اذنیه فهو قتیل﴾ او که وینه وتله
د سترګو څخه د مړي او یا د غوږو څخه دده نو دی قتیل بلل کېږي،
ولني د سترګو څخه وینه بهېدل او یا د غوږ څخه وینه بهېدل معتاد شی
نه دي بلکه د ضرب شدید څخه بهېږي، کما یدل علیه تجربه.

﴿واذا وجد القتیل علی دابة یسوقها رجل فالدیة علی
عاقلته دون اهل المحلة﴾ او که پیدا سو یو مقتول پر یوه بوده باندي
چي هغه دابه کشوله یوسړي نو دیت یې پر عاقله د هغه سړي دي چي

دابه يې كشوله او ديت يې نسته پر اهل محله باندي، ولي د سائق علاقه د مړي سره زياته ده تر اهل محله والاوو.

قال ﴿وان وجد القتيل فى دار انسان فالقسامة عليه والدية على عاقلته﴾ او كه پيدا سو مړي په سراى كي د يو چا نو قسامه يې پر ده ده يعني پنځوس واره به ده ته قسم وركوي او ديت يې پر عاقله دده دي، يعني نه پر عاقله د نورو محله والاوو.

﴿ولا يدخل السكان فى القسامة مع الملاك عند ابي حنيفة رحمه الله﴾ او نه دا خلېږي اوسېدونكي د سرايو يعني يا په كرايه او يا په عاريت د مالكانو سره د سرايو په قسامه كي په نېز د امام اعظم رحمه الله حاصل د مسئلې دادي چي په يوه محله كي څو كوره مالكان د سرايو اوسېدل او يو څو كوره په كرايه وغيره اوسېدل، نو قسامه يوازي پر مالكانو ده نه پر سكانو يعني اوسېدونكو.

**فایده:**- چي قول مذكوره په متن كي قول د امام محمد رحمه الله هم دي، او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي قسامه پر مالكانو د سرايو او اوسېدونكو ټولو ده، د ليل د قول د طرفينو دادي چي مالكان د سرايو يو د بل سره ډېره مرسته او نصرت كوي، ولي كرايه داران وغيره خو كاهي په دې محله كي اوسېږي او كاهي ددې ځاى څخه بار سي بلي محلې ته ولاړ سي.

قال ﴿وهى على اهل الخطة دون المشتريين منهم ولو بقى واحد منهم﴾ او قسامه پر اهل خط باندي ده نه پر هغه چا چي د اهل

خط څخه سرایونه د محلې رانیولي وي که څه هم یو د اهل خطې څخه پاته وي.

**پوهنه**:- چي د اهل خطه تفسیر کفایه والاداسي کړي دي چي دوي هغه قدیم مالکان دي چي څه وخت امام المؤمنین دغه محله یا مځکه د کفارو څخه نیولې وي او پر دغو مالکانو یې وېشلې وي او هر یوه ته یې خط د خپل حصې ورکړي وي.

**درویش وایي**:- په دې تفسیر کي اشکال دادي چي په مرور د سوو کلو څخه معلومېږي چي دا کسان د مخطط لهم زامن یا کړوسیان وغیره دي یا رانیونکي د هغو څخه دي، او منتهی عرب وایي چي" اهل خطي کسانیکه در آن زمین فرود آمده باشند وپیش از آن کسي در آن فرود نیامده باشند. وعندی هذا التفسیر قریب والله اعلم.

او داهم مذهب دي د امام اعظم او د امام محمد رحمه الله او امام ابو یوسف رحمه الله وایي چي اهل خطه او مشترین منهم سره شریکان دي په قسامه کي ولي ضمان د قسامه او دیت خو مربوط په ترك د حفاظت د اهل محله پوري دي چي دوي د فساقو فجارو محافظت د خپلي محلې څخه نه دي کړي په موضوع د محافظه خو ټوله سره شریکان دي.

**درویش وایي**:- چي که زه د اهل ترجیح څخه وای مابه ترجیح و مذهب ته د امام ابو یوسف رحمه الله ورکړې وایي، لظهور دلیله.

**مسئله**:- که د خطي څخه هیڅوك نه وپاته بان باعوا فالقسامة على المشتريين منهم، هدایه.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولو وجد القتيل فی سفينة فالقسامة على من فيها من الركاب والملاحين﴾ او كه چېري پيدا سو مقتول په يوه كښتۍ كي نو قسامه پر هغه كسانو ده چي په كښتۍ كي سپاره دي او پر اوبازانو باندي، ولي چي د كښتۍ محافظت او زمه واري پر دغو كسانو باندي لازمه ده، وهذا باتفاق ائمة المذهب.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان وجد القتيل فی مسجد محلة فالقسامة على اهلها﴾ او كه پيدا سو مړی په مسجد كي د يوې محلې نو قسامه پر اهل د هغې محلې ده ولي مامور په حفاظت سره د مسجد هم دغه محله والا دي.

﴿وان وجد فی المسجد الجامع او الشارع الاعظم فلا قسامة فيه والدية على بيت المال﴾ او كه پيدا سو مړی په جامع مسجد كي اويا په يو لوي لاره كي نو قسامه پر هغه نسته او ديت يې پر بيت المال دي، ولي مامور په حفاظت د جامع مسجدانو خوعمومي مسلمانان دي، ولاتعين فيهم حتى يختار الخمسون منهم للقسامة" او بل په قسامه كي خو مقصود نفي د تهمت د قتل ده د معلومو كسانو څخه چي محله والا دي ولا معلوم فی الجوامع بلكه مقصود دادي چي عمومي كسان د يوې محلې او د بلي محلې په جوامعو كي سره يو ځای كېږي د پاره د لمانځه، او حفاظت د لويو لارو خو د چا په زمه نه دي نو ځكه قسامه پر چا نسته، لكن د پاره ددې چي د مسلمان وينه هدر او لغوه ولاړه نسي نو ځكه دي ديت بيت المال وركړي.

**وروښتي وائي**:- چي دا مسئله پر اصطلاح قديم د جامع مسجدانو بناء ده چي په لوي لوي ښارو کي به د دوه دري ځايه مثلا د جمعې لمونځ کېدی، مګر په اوسنۍ حالت کي هر مسجد چي څوك جوړ کي که څه هم هغه مسجد ضرار وي چي په نيت د تفريق بين المسلمين جوړ سوي وي، او يا په سبب د بغض او عناد د باني د مسجد قديم جوړ سوي وي او په هغو ټولو کي د جمعې لمونځ کېږي، نو د ورته جوامع مړی پر اهل محله تاوان دي يعنې قسامه او ديت يې پر ټوله اهل محله دي، ولي چي دا خو يو محل محدود الاول والآخر دي که څه هم مسجدان او جامع مسجدان مثلا دوه يا درې دي، فاحفظ هذه الفائدة حتى لاتظن ان الجوامع المعتادة فی زماننا قتيلها لاقسامة فيه ودية على بيت المال.

قال ﴿وان وجد فی برية ليس بقربها عمارة فهو هدر﴾ او که پيدا سو مړی په يوه بيابان کي چي نژدې وهغه ته ابادي نه وه يعنې په داسي شان چي د سړي چغاري او نارې تر هغې قريې پوري نه رسېدلې، نو دغه مړی لغو دي نه يې پر چا قسامه سته او نه يې ديت سته ولي چي هيڅ چا دده په باب کي تقصير نه دي کړي چي دده کهمك ته نه ورغلی، ولي چي دده آواز ودغو قريو ته نه رسېدی، او په هدايه کي وايې چي که دغه بريه او بيابان د چا ملکيت وه بيا قسامه د هغه سړي پر عاقله ده.

قال ﴿وان کان بين القريتين کان على اقربها﴾ او که پيدا سو مړي په منځ کي د دوو قريو، نو قسامه او ديت پر هغه اقرب او نژدې قريه دي، لکن دا حکم على الاطلاق نه دي بلکه مقيد په دې دي چي

واقرب قریه تـه دده آواز د استغاثه رسېدي ولـي پـه دې صـورت کـي د اقـرب القريتيـن د اهـل د خوا په حق دده تقصير سوي دي، او كه يې اواز د استغاثه تر اقرب القريتين پوري نه رسېدي فهو هدر. جوهره وزياده.

قال ﴿وان وجد فی وسط الفرات يمر به الماء فهو هدرٌ﴾ او كه پیدا سو مړی پـه مينځ كي د فرات رود چي اوبه پر بهېدلي نو هغه مړی لغو دي يعني نه يې پر چا قسامه سته او نه يې ديت.

**پوهنه**:- چي فرات كه څه هم د كوفې د رود نوم دي لكن دا ذكر پر سبيله د مـثال دي نـه پـر سبيله د تخصـص ولـي چـي حكـم د نورو رودو لكـه، رود نـيل د مصر، او د هلمند رود په افغانسان كي. او يا اټك رود په پاكستان كي، نو ددې هم دغه حكم دي كما لا يخفی.

**فـائده**:- مراد د وسط څخه وسط حقيقي په اعتبار د مسافت نه دي بلكه چي اوبه پر مړي بهېږي كه څه هم ويوې غاړې ته نژدې وي هم وسط بلـل كېږي يعـني مقابل د شطر، په عنايه كي وايي چي فقهاء رحمهم الله وايي چي دا حكـم د هـدر په هغه صورت كي دي چي اصلي چينې د رود د دار الحرب څخه را شروع سوي وي، ولي چي په دې صورت دی قتيل د دار حرب بلـل كېږي نـو ځكـه هـدر دي او كـه سر چشمې د رود په دار اسلام كي وې او هم په دغه دار اسلام كي اوبه رواني وې نو ديت د مړي پر بيت المال دي ولـي دا رود پـه سلطه يعني تصرف كي د مسلمانانو دي نو دا مړي قتيـل المسلمين بولـل كېږي او چي قاتل يې نه دي معلوم نو ديت به يې د مال څخه د عمومي مسلمانانو وركول كېږي چي بيت المال دي.

قال ﴿وان كان محتبساً بالشاطى فهو على اقرب القرى من ذالك المكان﴾ او كه مړى بند وو په يو كناره كي د درياب، نو تاوان د مړي پر هغه نږدې قريې ودغه ځاى ته دي، يعنې ديت يې پر دوي دي ولي دغه غاړه د رود ګويا د دوي په تصرف ده ولي چي دوي د دغه ځاى څخه اوبه راوړي او مواشي پر اوبه وي.

قال ﴿وان ادعى الولى على واحد من اهل المحلة بعينيه لم تسقط القسامة منهم﴾ او كه دعوه وكړه ولي د مړي پر يوه سړي معين د محلې يعني چي دغه سړي رما قريب وژلي دي، نو دده په دغه دعوه سره قسامه د اهل محله څخه نه ساقطېږي ولي دده په دغه دعوې سره خو قاتل نه سو معلوم ځكه چي شاهدان نسته.

**پوره شرحه**:- چي دا روايت د مبسوط دي وهو القياس، او ابن المبارك د امام اعظم رحمه الله څخه داسي روايت كړي دي چي قسامه د اهل محله څخه ساقط دي، او د امام محمد رحمه الله څخه ورته روايت موجود دي دليل ددې روايت دادي چي ولي چي په يوه سړي دعوه د قتل وكړه نو ګويا ده نورو محلې والاوو ته ابراء وركړه نو پس له ابراء څخه د ولي قسامه پر نورو نسته ولي چي مستحق د قسامې خو ولي دي، وان لم يفد تلك الدعوى له لعدم الشهود.

قال ﴿وان ادعى الولى على واحد من غير هم سقطت عنهم﴾ او كه دعوه وكړه ولي د قتل د قريب خپل پر يوه سړي چي غير د محلې والاوو څخه دي نو قسامه ساقطه ده د اهل محله والاوو څخه، ولي چي حق د قسامه پر اهل محله چي مړي په هغه محله كي پيدا سوي په دې

پوري اړه لري چي ولي پر اهل محله باندي الزام د قتل ولګوي، نو چي د دعوې د قتل پر بل چا دائره کړه نو دعوه د قتل يې د اهل محلې څخه پورته کړه نو قسامه هم ددوي څخه پورته ده.

قال المصنف رحمه الله ﴿واذا قال المستحلف قتله فلان، استحلف بالله ما قتلت ولا علمت له قاتلاً غير فلان﴾ او كه وويل يوه قسم اخستونكي چي دا سړي فلانی مړ کړي دي، نو دي قسم ورکړه سي په خدای جل جلاله سره چي نه ما وژلی دي او نه يې زه په قاتل خبر يم غير د فلاني څخه، ولي امكان لري چي دی په دغه خبره سره دفع د دعوی د قتل د ځان څخه كوي، نو ځكه دي دا مذكوره قسم وركړه سي.

قال ﴿واذا شهد اثنان من اهل المحلة على رجل من غير هم انه قتله لم تقبل شهادتهما﴾ او كه چېري شاهدي ادا كړه دوو كسانو د اهل محله پر يوه سړي چي هغه ددوي د محلې نه وو چي دغه سړی دا مقتول قتل كړي نه دي قبلوي يعنې قاضي شاهدي ددوي، دا هم مذهب دي د امام اعظم رحمه الله څخه او ياران وايي چي شاهدي دي قبوله كړه سي، والدلائل فی الشروح المطولة.

# ﴿كتاب المعاقل﴾

دا كتاب دي په بيان كي د احكامو د معاقل.

**فائده**:- چونكه د مخه په باب كي تېره سوه چي موجب او حكم د قتل خطاء، وما فی معنا، ديت دي پر عاقله باندي نو چاره نسته د

پېژندلو ځخه د عاقلې يعنې په شرعه شريفه کي عاقله کوم کسان دي نو ځکه مصنف رحمه الله دا کتاب په بيان د عاقلې راوړي دي.

**لغوي معنى**:- چي معاقل جمع د معقله ده يعني په زور د ميم او په پېښ د قاف لکه مکارم جمع مکرمه ده معقله ديت ته وايي جَلاله

**تفريع**:- ددې ځخه چي معقله ديت ته وايي دا معلومه سوه چي د کتاب عبارت په حذف د مضاف يعنې کتاب اهل المعاقل ولي خو ديات په دمخه باب کي تېر سو، په دې کتاب کي خو مقصود بيان د اهل المعاقل دي، يعنې هغه کسان چي ديت د مړي به ورکوي، وهذا مجاز شائع حتى فى القرآن، واسئل القرية، اى اهل القرية.

قال المصنف رحمه الله ﴿الدية فى شبه العمد والخطاء وكل دية وجبت بنفس القتل على العاقلة﴾ او ديت په شبه عمد کي او په خطاء کي يعني چي بيان د دواړو د مخه تېر سوي دي، او داغه رنګه پر هغه ديت چي په نفس قتل سره واجب سوي وي هغه ديت پر عاقله دي.

**لغوي معنى**:- چي فائده ددې قول د مصنف رحمه الله بنفس القتل داده چي هغه ديت چي د صلح د لاري په قتل عمد کي پر قاتل ايښول سوې وي هغه ديت پر عاقله نه دي بلکه په مال کي د قاتل دي ولي دا ديت په نفس قتل سره نه دي واجب سوي بلکه په صلحه سره، لان مقتضى القتل العمد القصاص کما مر، او په سبب د پلار والي واجب سوي وي لکه پار چي عمداً زوي مړ کي نو مقتضى د نفس قتل عمد خو قصاص وو لکن په سبب د ابوة پلار د قصاص ځخه خلاص دي کما مر او ديت د زوي په مال کي د پلار دي اذا عرفت هذا فما قال صاحب النهايه، اى ابتداء آه"

او فائده د قيد د ابتداء يې مذكوره دوه ديته بيان كړي دي ليس بشئ، ولي دا حذف ته ضرورت نسته ولي چي دوه ديته په قول د مصنف رحمه الله ووتل بنفس القتل فافهم، درويش.

قال المصنف رحمه الله ﴿والعاقلة اهل الديوان ان كان القاتل من اهل الديوان﴾ او عقله دسړي اهل د فتر دي كه قاتل د اهل دفتر څخه وو.

**پوه نسه**:- چي ديوان هغه كتاب دي چي په هغه كي نومان د حكومت د مامورينو او فوجيانو او ددوي تنخوا ګاني نوشته وي، دا هم زموږ مذهب دي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي مراد د اهل ديوان څخه عصبات د قاتل دي، ومذهبنا يوافق اللغة كما لا يخفى على من طالع كتب اللغة كما فى العناية.

**فائده**:- اول واضع د ديوان حضرت امير المؤمنين عمر رضي الله عنه دي على ما فى العنايه.

**فائده**:- كه قاتل د اهل ديوان څخه نه وو نو كه كهمك والا اهل حرفه دده وو يعني چي دده سره په يو كسب اخته وو، لكه نجاران يو حرفت والا دي، آهنګران هم يو حرفت والا دي وهكذا بنايان، خياطان، بزازان، زرګران وغيرهم چي په اصطلاح كي د پاكستان د خلكو برادري ورته وايي يعني په برادري كي د قوم مراعات نسته، بلكه په خير او شر كي دغه اهل حرفت سره كهمكيان وي، نو عاقله دده اهل حرفه دده دي، او دا شى يعني تناصر بالحرفه په افغانستان كي نسته، د هغو تناصر په

قوميت او عصوبت سره دي نو عصبه د سړي عاقله دده دي كما سيئاتي، او په بعض عربو كي تناصر په حلف سره كوي.

قال ﴿يوخذ من عطاياهم في ثلث سنين﴾ او دا ديت به اخسته كېږي د دوي د تنخوا ګانو څخه په درې كاله كي يعنې چي پوره ديت وي د هر سړي څخه به يې په درې كاله اخلي، او كه واجب نصف ديت وو يا ثلثين د ديت وه نو په دوه كاله به يې د هر يوه څخه اخلي، او كه ثلث ديت وو ياكم تر هغه نو په يوه كال كي به يې ځندي اخلي.

قال المصنف رحمه الله ﴿ويدخل القاتل مع العاقلة فيكون فيما يؤدى كاحدهم﴾ او داخلېږي قاتل سره د عاقلې ولي چي فاعل د قتل دى دي، نو څرنګه به دده په ګناه نور خلك نيول كېږي او دى به خلاصېږي، وقال الشافعي ليس على القاتل شئ" نو قاتل به په وركولو كي د ديت لكه يو عاقله وي.

ازتحقيقات مصنف:- پر ښځو او كوچنيانو هيڅ شى نسته يعني عاقله نه دي ولي چي ديت پر هغه چا لازمېږي چي د كهمك مالك وي او كهمك پرېږدي، او رواج په اهل اسلام كي دادي چي په ښځو او كوچنيانو سره كهمك نه غواړي، ج.

قال ﴿وعاقلة المعتق قبيلة مولاه﴾ او عاقلهد ازاد كړه سوي مريي قبيله د بادار دده ده، قال عليه السلام مولى القوم منهم.

قال ﴿ومولى الموالات يعقل عنه مولاه وقبيلته﴾ او د مولى موالات عقل او ديت دده به دده مولى او د هغه قبيله وركوي.

پوهنه:- چي مولى الموالات هغه مجهول النسب سړي ته ويل کېږي چي يو سړي ته ووايي چي زما سره عقد د دوستۍ وکړه په دې توګه که ما جنايت وکړی تاوان به يې ته پرې کوي، او که زه مړ سوم زما ميراث ستا دي او هغه سړي دا عقد ورسره وکړي.

قال ﴿ولا يتحمل العاقلة اقل من نصف عشر الدية وتحمل نصف العشر فصاعدا وما نقص منه فهو من مال الجانى﴾ او تحمل او برداشت نه کوي عاقله کم تر نصف عشر د ديت يعنې تر پنځه سوه کمي روپۍ، او تحمل به کوي عاقله پوره نصف عشر الدية يعنې چي پوره پنځه سوه درهمه دي، او چي تر نصف عشر د ديت کمي روپۍ وي هغه د مال څخه د جاني ورکول کېږي.

قال ﴿ولاتعقل العاقلةجناية العبد﴾ او پر عاقله د بادار نسته ديت د جاني مريي، لما روى عن عمر وابن عباس ﷺ لا يعقل العاقلة عمداً ولاعبداً ولا اعترافاً" يعنې ديت نه ورکوي عاقله د قتل عمد يعنې چي په صلح سره ديت وګرځي، او نه ديت د جنايت د مريي او نه د هغه جنايت چي په اقرار د جاني ثابت سي.

﴿ولاتعقل الجناية التى اعترف بها الجانى الا ان يصدقون ولاتعقل ما لزم بالصلح﴾ او عاقله ديت نه ورکوي د هغه جنايت چي جاني پخپله اقرار په کړي وي، مګر نه هغه وخت چي عاقله دده د اقرار تصديق وکړي، او داغه رنګه عاقله ديت نه ورکوي هغه ديت چي په صلحه سره په قتل عمد کي مال ګرځېدلی وي، لما مر فى الحديث.

قال ﴿واذا جنى الحر على العبد جناية خطاء كانت على عاقلته﴾ او كه جنايت وكړي حر سړي پر مريي د يو چا نو ديت يې پر عاقله د حر دي، داهم زموږ مذهب دي موږ وايو چي دا ديت خو ضمان د مال نه دي بلكه د نفس د انسان دي او ضمان د نفس انسان چي په خطاء سره وي پر عاقله دي كما فى الجناية على الحر خطاء، او امام شافعي رحمه الله دا جنايت پر مال د مالك العبد بولي نو ځكه امام شافعي رحمه الله قيمت د مريي پر جاني لازم بولي بالغة مابلغ، يعني قيمت د مريي تر څو روپو پوري چي ورسېدى كه څه هم قيمت د مريي تر لس زره (١٠٠٠٠) روپى بالاسي چي پوره ديت دي، او دا خو متفق عليه خبره ده چي جنايات ماليه پر عاقله نسته بلكه په مال كي د جاني دي، الله احفظنى من جميع الجنايات على نفسى وعلى غيرى برحمتك يا ارحم الراحمين.

# ﴿كتاب الحدود﴾

دا كتاب دي په بيان كي د حدود شرعيه وو

داكتاب ډېر ضروري دي زدكړه يې لازمي ده، او اجراء ددې حدودو په جامعه اسلامي كي هم حتمي دي، درويش.

**فائده**:- ددې كتاب او د مخني كتاب مناسبت دادي چي په مخني كتاب كي ذكر د هغه جنايت دي چي پر بل چا وي، او د هغه جنايت د احكامو بيان، او په دې كتاب كي بيان د جنايت دي پر ځان باندي او د هغه د جنايت د احكامو، لكن چونكه پر بل جنايت كول ډېره سخته ګناه ده تر جنايت پر خپل ځان نو ځكه يې هغه كتاب دمخه كړى.

**فائده**:- حدود جمع د حد ده او حد په لغت کي منع ته وايي نو ځکه دروازه وان ته حداد وايي چي خلګ منعه کوي د دخول څخه د سراى، او هغه تعريف ته چي منعه کوي غير د دخول څخه په معرف کي حد ورته واى که حد منطقي وي او که رسم منطقي وي په اصطلاح د نحاتو، کذا فى الشرح مولى عبد الرحمن الجامى رحمه الله، او هم دا وجه ده چي عقوباتو ته حدود وايي لکه حد زنا وغيره ته حدود وايي چي هغه سړي د بيا کولو څخه د هغه کار منع کوي، او داغه رنګه نور کسان منع کوي د کولو څخه د اسبابو د هغه عقوبت چي زنا ده مثلاً او حرامو کارو ته حدود وايي ولي مسلمانان ځندي ممنوع دي، قال الله تبارك وتعالى تلك حدود الله فلا تقربوها" او هم دا سبب دي چي ځوك سراى يا مځکه پر چا خرڅه او قباله نوشته کوي قاضي د محکمې پوښتنه ځندي کوي چي حدود اربعه يې څنګه دي يعنې چي بل څوك منع کړې ده د تعرض څخه د داخل الحدود.

**فائده**:- حد په شرعه شريفه کي هغه عقوبت ته وايي چي معين وي د جانب څخه د خداى جل جلاله او د هغه د رسول ﷺ نو تعزير ته حد نه وايي ولي هغه مقدار معين نه لري.

**پوښتنه**:- د فقهې په کتابو کي وايي چي تعزير په منځ کي د درو ٣ او د نهه دېرشو ٣٩ دُرو دي؟

**ځواب**:- په دې سره خو تعين د مقدار د تعزير نه وسو.

پوهنه:- چي په حد کي دا شرط دي چي خالص حق الله به وي نو قصاص ته حد نه وايي ولي هغه حق العبد دي، هذا حاصل ما في المنح، والبحر، والتبيين، وغيرها، مع زياده.

فائده:- مقصود اصلي او حکمت الهی د مشرعيت څخه د حدود زجر او منع د بندګانو د هغه کار څخه چي يا ضرر د فاعل وي په نفس کي دده لکه حد زنا او ضرر وي پر آبروي کي د چا لکه حد قذف او يا ساتنه د اموالو د خلکو وي لکه حد سرقه.

پوهنه:- چي د حدود په اجراء سره سړی د ګناه څخه نه پاکيږي ولي چي دا حدود په حق کي د اهل ذمه کافرانو هم جاري کيږي، کذا في الهدايه والبنايه.

تفريع:- که څوك مذکوره کارونه وکړي او حدود پر جاري سي مګر دی توبه وکاږي د ګناه څخه نه خلاصيږي، او ډېر فقهاء پر دي دي چي حدود مطهر او پاکونکي د ګنهو دي، و الله اعلم.

قال المصنف رحمه الله ﴿الزناء يثبت بالبينة والاقرار﴾ او زنا ثابتيږي په شاهدانو سره، او په اقرار د زاني.

پوهنه:- چي شروع د مصنف رحمه الله د حد زنا څخه لکثرة دواعيه من جانبی المرئة والرجل، او زناء په مد سره لغت نجديه دي او پ قصر سره لغت حجازيه دي.

﴿شرائط حد الزناء﴾ (۱) زاني به عاقل او بالغ وي نو په زناء کي د لېوني يا کوچني نا بالغ حد نسته (۲) په خپل خوښه سره به زنا کوي، نو پر مکره حد نسته (۳) په کوس يعني په فرج کي د ښځي به وي، نو په

لواطت کي که د ښځي سره وي او که د نر سره وي حد نسته (۴) هغه موطوئه به ځای د شهوت وي يعني عادةً نو په زنا کي د نا بالغي نجلي چي د شهوت او خوند وځای ته نه وي رسېدلې حد نسته (۵) نه به په ښځه کي ملك د نکاح وي او نه هم ملك د رقبې، نو په استعمال کي د فرج د ماينې يا مينځي دده حد نسته (۶) شبه به نه وي پکښې لکه پلار چي د زوي مينځه په شبه کي د انت ومالك لابيك الحديث" وغيي نو پر پلار حد نسته، لقوله عليه السلام ادرؤا الحدود بالشبهات مااستطعتم.

**فوائد**:- چي په هدايه کي وايي چي دا شاهدان او يا اقرار به په نېز د امام الوقت او يا قاضي وي، اما الثبوت بالنية فظاهر" واما بالاقرار اګرچه په اقرار کي خو دا احتمال سته چي دا سړی به درواغ ووايي لکن دا صرف احتمال بې معنا دي ولي چي په دې اقرار کي هم د سړي و عقوبت ته متوجه کېږي او هم پېغور ته نو په درواغو کي د سړي څه فائده ده، نوظن قوي دادي چي دی په اقرار کي صادق دي.

قال المصنف رحمه الله ﴿**فالبينةان اشهد اربعة من الشهودعلى رجل او امرئة بالزناء**﴾ او شاهدان دادي چي شاهدي به اداء کوي څلور کسه د شاهدانو څخه پر نر او يا ښځي په زنا کولو سره.

**فوائد**:- چي دا شاهدي به په يوه مجلس کي وي او که يې په مختلفو مجلسو کي اداء کړه نو شاهدانو ته دي حد قذف ورکړه سي يعني زنا خو نه په ثابتېږي، درمختار.

**پوښتنه**:- قتل نفس خو لويه ګناه ده تر زنا كما يدل عليه قوله تعالى ومن قتل مؤمناً متعمداً فجزائه جهنم الآيه" او په قتل كي دوه شاهدان كافي دي، نو په زنا كي ولي څلور كسه غواړي؟

**ځواب**:- زنا په دوه نفره پوري تعلق لري يعنې نر او ښځه نو د هر يوه پر فعل دوه شاهدان غواړي، او قتل خو يو سړي كوي غالباً نو د يوه سړي پر فعل باندي دوه كسه كافي دي، واذ قلنا غالباً فلا يراد ان القتل قد يكون باثنين بل ازيد فافهم.

**پوښتنه**:- چي شرط د شاهدانو د زنا دادي چي څلور سره به نر وي، فشهادة المرئة لاتقبل فى الزناء لاانفراداً ولااجتماعاً" او بل شرط دادي چي ټوله به حر كسان وي نو د مريانو شاهدي په زنا كي نه قبلېږي او ګرده به عادلان وي نو د فساقو شاهدي په زنا كي نسته، او مسلمان به وي نو د كفارو شاهدي په زنا كي منظوره نه ده، او شاهدي د شاهدانو پر شاهدي هم په زنا كي نه قبلېږي، للشبهة" او مكتوب د يوه قاضي چي د هغه شاهدان تېر سي وبل قاضي ته هم نه قبلېږي، جوهره.

**فائده**:- په شاهدانو كي د زنا لفظ صريح شرط دي لكه زنا او نكت چي د ښځي د مخ د خوا غوولو ته وايي، نوكه شاهدانو په لفظ جماع حرام يا وطي حرام سره شاهدي اداكړه هغه نه ده منظور ولي چي جماع حرام يا وطي حرام خو لواطت ته د ښځي هم وايي او پر لڅه خېټه د ښځي څان انزالولو ته هم وايي وغيره، وقد قال عليه السلام ادرؤا الحدود بالشبهات.

مسئله:- که دوو شاهدانو د زنا شاهدي اداء کړه او دوو د اقرار بالزناء شاهدي اداء کړه د حد د پاره کافي نه ده.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿سئالوه الامام عن الزناء ما هو وكيف هو واين زنى ومتى زنى وبمن زنى﴾ نو دي پوښتنه وکړي امام يعنې يا نائب د امام چي قاضي دي د زنا په باره کي چي زنا څه شی ده يعنې تعريف شرعي دي څندي وپښتي چي هغه ادخال د ذکر د نر دي په فرج کي د ښځي او دا پوښتنه دي هم څندي وکړي چي څرنګه وه دا زنا ولي چي احتمال ددې سته چي د ښځي سره دي يې په زور زنا کړي وي او يا دي پلار د زوي مينځه غوولې وي، او دا پوښتنه دي هم څندي وکړي چي چېري او په کم ځای کي وه دا زنا ولي چي امکان سته چي دا زنا دې په دار حرب کي ورسره کړې وي چي په هغه کي حد نه لازمېږي، او دا دي هم پوښتنه څندي وکړي چي څه وخت يې زنا ورسره وکړه ولي چي احتمال ددې سته چي په کوچنوالي کي دې زنا ورسره کړې وي، پوښتنه دي هم څندي وکړي چي دچا سره يې زنا وکړه ولي چي احتمال ددې سته چي زاني دي د زوي د مينځي سره زنا کړې وي.

قال ﴿فاذا بينوا ذالك وقالوا رئيناه وطائها فى فرجها كالميل فى المكحلة﴾ نو شاهدانو بيان وکړي يعني ځواب يې ورکړي د مذکوره شيانو، او ووايي چي موږ ولېدي فلانی سړی يعنې زاني دا بيان د معنا د زنا ده، چي وه يې غوولـه فلانـې ښځه په کوس کي ددې لکه سلائي چي خلک سترګي په توره وي د رنجو په رنجونوني کي يعني دغسي نر خپل ذکر د ښځي په فرج ننه يستلی وو.

قال المصنف رحمه الله ﴿وسئال القاضی عنهم فعدلوا فی السر والعلانية﴾ او قاضي هم پوښتنه کړې وه د حال څخه د شاهدانو يعني د قربې او د محلې د خلکو څخه يعني د شاهدانو د حال چي عادلان دي اوکه فاسقان او که مستور الحاله دي، او ددوي تعديل وکړه سو يعني د خلکو د خوا څخه دوي عادلان وښول سوه.

**پوهنه**:- چي بعض فقهاء رحمه الله وايي چي که عدالت ظاهر په شاهدانو کي موجود وو نو قاضي دي پوښتنه نه پسي کوي ولي حتى الوسع د حدود په لغوه کي دي کوشش وکړي لما مر من الحديث النبوي، لکن په اکثره معتبره کتابو کي د فقهي شريقي وايي چي شاهدانو چي شاهدي اداء کړه قاضي دي زاني بندي کړي څو چي قاضي پوښتنه کوي د حال د شاهدان، ولي چي زاني ونه تښتي، ددې بيان څخه صريح معلومېږي چي په ظاهر العدالت دي قاضي اکتفاء نه کوي بلکه پوښتنه د حال دي وکړي.

**سوال**:- دا بندي کول د قاضي تعزيراً دي او که احتياطاً دي، نو که تعزيراً وي خو بيا جمع په منځ کي د تعزير او د حد راځي که چېري تعديل د شهودو وکړه سي او دا جمع ناروا ده په يوه حالت کي، او که احتياطاً وي نو خلاف د حديث نبوي ﷺ چي تېر سو لازمېږي ولي په دې حبس احتياطي کي د حد زنا تېښتګ والي راځي؟

**جواب**:- مجمع الانهر والا وايي چي دا حبس احتياطاً ويدل عليه قولهم لئلا يهرب" په اخر کي يې د کلام د تامل لفظ ويلي دي.

**درويش وايي**:- وايي چي امكان لري چي دادي اشاره ودې ته وي چي حبس احطياطي خو خلاف د حديث نبوي ﷺ دي، نو د درويش په فكر قاصر دا حبس تعزيراً دي، او جمع د حد او تعزير خو په يوه حال كي نه ده روا مثلا چي محكوم بالرجم د مخه تر رجم يو څو درې ووهي او بيا يې متصل رجم كي، او په مانحن فيه كي خو دغسي نه ده ولي چي حال د حبس خو دپاره د تحقيق د حال د شاهدانو دي. په هغه حال كي خو حد نسته حد خو وروسته تر تعديل وركول كېږي، والعلم عند الله.

قال ﴿**حكم بشهادتهم**﴾ نو حكم دي وكړي قاضي په شاهدي سره ددوي يعنې پر قاضي واجبه ده چي حكم به كوي په مقتضي ددوي يعنې حد الزناء لظهور الحق عنده بعد الشهادة والتعديل.

﴿**والاقرار ان يقر العاقل البالغ**﴾ او اقرار كونكي به عاقل او بالغ وي، يعنې د لېوني او كوچني واقرار ته اعتبار نسته.

﴿**على نفسه بالزناء اربع مرات فى اربعة من مجالس المقر كلما اقر رده القاضى فاذا تم اقراره اربع مرات**﴾ نو څلور واره دي اقرار وكړي پر خپل نفس زاني د زنا په څلورو مجالسو كي د اقرار كونكي يعنې د قاضي مجلس بدلي نه دي لازم، او هر وار چي دى اقرار كوي قاضي دي مخ ځندي واړوي، نو چي پوره سوه څلور واره اقرار د مقر.

**پوښتنه**:- چي څلور واره اقرار د زاني زموږ مذهب دي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي يو وار اقرار كافي دي دى دا قياسوي پر اقرار د نورو حقوق ماليه وو چي يو وار اقرار پكښي كافي دي، او زموږ دليل

هغه حدیث دي د ماعز اسلمي ﷺ چي اصحاب السنن يې روایت کړي دي چي د زنا په اقرار سره څلور واره په حضور کي د رسول الله ﷺ وکړي او هر وار چي به ده اقرار وکړي آنحضرت ﷺ به مخ بلي خوا ته ځندي واړوي، او ماعز ﷺ به هغه بلي خوا ته ورغلي او اقرار د زنا به يې وکړي دا ټوله د پاره د معنا د ستر دي، او بل دلیل دادي چي چونکه د زنا په شاهدانو کي څلور کسه شرط دي پر خلاف د قیاس د شاهدانو د نورو حقوقو د پاره د تحقق د معنا د ستر په زنا کي، نور دغه رنګه په اقرار کي د زنا څلور واره والي شرط دي بقيام کل اقرار مقام شاهد ليتحقق معنا ستر الزناء ودفعاً للحد عن الزانی کما ورد فی الحدیث النبوی ﷺ وقد مر من قبل.

قال ﴿سئاله القاضی عن الزناء ماهو وکیف هو واین زنی وبمن زنی فاذا بین ذالك لزمه الحد﴾

**ضروري فائدي**:- چي معنا ددې عبارت او فائدې ددې قیودو عنقریب تېري سوې فتذکر ولا نعیدها لکن

**ګټوره فائده**:- چي مذهب دادي چي د هر وخت تېرېدل مانع د صحت د اقرار بالزناء نه دي، بخلاف الشهادة فلذا لم یذکر المصنف رحمه الله قید معنی زنی فافهم.

قال ﴿فان کان الزانی محصناً رجمه بالحجارة حتی یموت یخرجه الی ارض فضاء﴾ نو که زاني محصن وو نو قاضي دې رجم کړي په ډبرو تر هغو پوري چي مري، یعني قاضي دې دا حکم صادر کړي، او زاني دې وباسي یو بیابان او خالي ځکي ته تاچي رجم يې

اسانه سي او خلګ يو د بله سره په ډېرو خوږ نه کي لکه څنګه چي عليه السلام امر وکړي چي ماعز ﷺ و مصلى ته د عيد ګاه وباسي او هوري يې رجم کړي.

**پوه نښه**:- چي شرطونه د احصان د زنا على ما فى الجوهره والهدايه وغيرهما من كتب الفقه دادي (۱) بلوغ (۲) عقل (۳) اسلام (۴) حريت (۵) نكاح صحيح (۶) دخول او وطي د مايني سره (۷) پر دغه صفت د احصان به پاته وي.

**فوائده**:- په دخول کي شرط د غنړ ننوتل په کوس د مايني پر داسي وجه چي غسل پر واجب سي انزال شرط نه دي، او د کوني د خوا کار کول اعتبار نه لري، او د امام ابو يوسف رحمه الله څخه روايت دي چي اوم شرط نه دي لازم حتى كه چېري يو سړی د مايني سره وطي وکړي او بيا مرتد سي او زنا وکړي وروسته بېرته اسلام راوړي لکن په نوي اسلام کي يې د مايني سره وطي حلال نه وکي نو امام مذکوره وايي چي دى محصن په وطي سابقه سره دي، او طرفين رحمه الله وايي چي په حديث شريف کي راغلي دي من اشرك بالله فليس بمحصن.

قال ﴿يبتدى الشهود بالرجمه ثم الامام ثم الناس﴾ او شروع به کوي شاهدان په رجم دپاره د امتحان ددوي ولي چي امکان لري چي دوي به دارنګه وژل د مسلمان ډېره غټه ګناه وبولي او رجوع به وکړي د شاهدي څخه او حد به ساقط سي، جوهره ودر. او بيا دي امام ياقاضي په ډېرو وولي دپاره د امتحان دده چي شاهد ده په شاهدي کي د شاهدانو داسي يوه نکته ليدلېوي چي هغه د رد الحد په راځي هغه به

ښکاره کي او د قضا څخه به رجوع وکړي، او بيادي عمومي خلك
ډبري پر زاني وه وروي.

فائده:- د شاهدانو او د امام تر پايه پوري رجم نه دي لازم.

قال المصنف رحمه الله ﴿فان امتنع الشهود من الابتداء سقط الحد﴾ او كه منع وكړه شاهدانو د ابتداء څخه د ډبرو ويشتلو يعني ټولو يا بعضو نو حد ساقط سو.

تنبیه:- چي دا مذهب دي د امام اعظم او امام محمد رحمه الله او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي حد نه ساقطېږي بلكه امام په ويشتلو د ډبرو شروع وكړي.

قال ﴿وان كان الزاني مقراً ابتدء الامام ثم الناس﴾ او كه زاني اقرار كونكي وو په زنا سره نو ابتداء او شروع د رجم دي امام وكړي او وروسته نور خلك.

فائده:- په دې ځای کي د يوه دقيق سوال جواب واردېږي چي ددې عبارت څخه دادسي معلومېږي چي كه امام منع وكړي د ويشتلو څخه نو حد ساقط دي او خلكو ته نه ده روا چي زاني رجم كي كه څه هم امام امر ورته وكي چي رجم يې كړي، او ابتداء د امام په رجم سره په حديث د علي رضي الله عنه ثابت دي، او په حديث شريف كي دا هم راغلي دي چي غامديه ښځي چي اقرار په زنا وكړی نو اول رسول الله ﷺ دا يوه شكه لكه نخود وويشتله او بيا خلكو، على ما في الهداية، نو سوال دادي چي د ماعز اسلمی رضي الله عنه په رجم كي خو رسول الله ﷺ حاضر نه وو او نه يې شكه ماعز ته ورغورځولې ده فكيف يصح مادل عليه العبارة المذكورة.

والجواب على ما يفهم من فتح القدير ان معنى د قول د علي ﷺ داده چي امام او قاضي شروع په رجم وکړي نو خلکو ته به دا ښکاره سي چي قاضي په بعض شروطو کي د قضا بالرجم تساهل نه دي کړی، نو که امام او قاضي منع وکړي د ويشتلو څخه نو دا علامه د رجوع ده د امر څخه د رجم د زاني په سبب د بعض تساهل دده څخه نو حد به ساقط سي" وهذا التساهل انما يتصور فی غير النبی ﷺ واما هو فهو كما قال الله تعالى، وما ينطق عن الهوى ان هو الا وحی يوحی" نو ددې جهته عليه السلام په رجم کي د ماعز حاضر نه وو، بلکه نور خلك يې امر کړه په رجم سره او هغو رجم کړي، او سره ددې اصل ابتداء د قاضي او امام په رجم سره په حديث دغامديه ثابت سوه، او دا ابتداء د عليه السلام تعليماً لقضاة الامة وهذا نهايۍ تحرير الجواب ومن الله التوفيق والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

قال ﴿ويغسل ويكفن ويصلى عليه﴾ او غسل دي ورکړه سي مرجوم ته يعني پس له مرګه او کفن دي ورکړه سي، او لمونځ د جنازې دي ورکړه سي ولي چي په صحيح حديث کي راغلي دي چي څه وخت چي ماعز اسلمي د رجم څخه مړ سو، نو خلکو پوښتنه وکړه د عليه السلام څخه دده د تکفين او د جنازې د لمانځه په باره کي نو عليه الصلوة والسلام ورته وفرمايله" اصنعوا به كما تصنعون بموتاكم" تاسي د ماعز سره هغه کار وکړی چي تاسي يې د نورو مړو سره کوي، يعنې غسل ورکړی کفن ورکړی او لمونځ ورکړی او عليه الصلوة والسلام زياته کړه چي ماعز داسي توبه وکښل که دده توبه پر اهل حجاز وويشل

سي تيولو ته به كافي وي، او عليه الصلوة والسلام دا هم زياته كړه چي ما دى وليدى چي په ولو كي د جنت يې غوټې وهلې.

پوښتنه:- څه سبب دي چي شهيد ته غسل نه وركوي او مقتول بالرجم ته غسل وركوي؟

ځواب:- مقتول بالرجم خو په حق الله سره ووژل سو، او شهيد خو فی سبيل الله ناحقه ووژل سو، مجمع الانهر.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان لم يكن محصناً وكان حراً فحده مائة جلدة﴾ او كه چېري زاني محصن نه وو په هغه معنا چي ذكر يې تېر سو، او حر وو مريې نه وو نو حد دده سل درې دي، قال الله تبارك وتعالى، الزانية والزاني فاجلدوا كل واحد منهما مائة جلدة الآيه".

سوال:- محصن خو هم تر عموم ددې آيت لاندي دي نو هغه ولي نه رجم كېږي؟

ځواب:- دا آيت مذكوره په حق كي د محصن منسوخ دي په بل آيت سره چي تلاوت يې په قرآن كي منسوخ دي او حكم يې باقي دي، او هغه آيت دادي، الشيخ والشيخة اذا زنيا فارجموهما نكالا من الله والله عزيز حكيم" كذا فی النور الانوار، والهدايه، والبنايه، يعني محصن نر او محصنه ښځه چي زنا وكړي نو رجم كړي دواړه، البته نكالا من الله والله عزيز حكيم، دليل د نسخ د آيت سابقه په دې آيت سره دادي چي دا آيت وروسته تر آيت سابقه نازل سوي دي باجماع صحابه رضي الله عنهم وعليه السلام چي ماعز اسلمي يې رجم كړی تر نزول د آيت سابقه وروسته وو.

قال المصنف رحمه الله ﴿ياء مر الامام بضربه بسوط لاثمرة لـه ضربا متوسطا﴾ او امر دي وكړي امام په وهلو سره د زاني غير محصن په داسي دُره چي په اطرافو كي يې غوټه نه وي كذا في الصحاح، وقيل غير ذالك، او وهل به هم ميانه ضرب وي يعني نه ټيپي كونكي ضرب وي ولي هغه ګاهي هلاك ته مفضي كېږي. او نه به داسي ضرب وي چي مضروب په خوږېږي نه، ولي په داسي ضرب سره خو د مضروب زجر نه راځي د آينده زنا څخه، كذا في الهديه.

﴿فائده جديده﴾:- كه زاني مضروب ضعيف البنية وو چي په متوسط ضرب كي ېېره د هلاك پر وه نو ضرب دې په قدر د برداشت د جسم دده ورسپك كي، كذا في فتح القدير.

قال المصنف رحمه الله ﴿ينزع عنه ثيابه ويفرق الضرب على اعضائه الا راسه ووجهه وفرجه﴾ او كالي دي ځندي وكاږي يعني غير د هغه قدر څخه چي ستر د عورت په راځي، ولي حضرت علي رضي الله عنه ددغه زاني څخه كالي كښله تاچي ښه خوږ سي او ددې حد زنا مبني پر شدت ده،م.

او وهل دې پر مختلفو اندامو وركوي ولي تولې‌دري كه پر يوه اندام وي غالباً هغه عضو به د كاره ولوېږي، او حد خو زاجر دي متلف نه دي، او مګر پر سر دې نه وهي او نه دې پر مخ وهي او نه دې دمخ د خوا پر فرج كه د نر وي او كه د ښځي وهي، ولي چي عليه السلام وهغه چا ته چي ده مبارك په وهلو د زاني مامور كړي وو ورته وويل اتق الوجه والراس والمذاكير، قال صاحب البحر ان ضرب الفرج مقتل والراس

مجمع الحواس الشريفه، والوجه مجمع المحاسن فلا يؤمن فوات شيئ منها، والحد انها شرع للزجر لا للهلاك ولا لفوات عضو، ولا لاذهاب شيئ من المحاسن، انتهى مع الزياده.

قال ﴿وان كان عبداً اجلده خمسين وكذالك الامة﴾ او كه دا غير محصن زاني مريي وو نو پنځوس درې دې ووهي، او داغه رنګه ده مينځه يعني د هغې حد هم پنځوس درې دي، لقوله تعالى فعليهن نصف ما على المحصنات من العذاب" دا آيت په باره كي د مينځيانو زانياتو چي محصن نه وي نازل سوي دي، او عقلي دليل يې دادي چي رق كمونكي د نعمت دي پر مريي نو كمونكي د عقوبت هم دي حاصل ما فى الهدايه.

قال المصنف رحمه الله ﴿فان رجع المقر عن اقراره قبل اقامة الحد عليه او فى وسطه قُبل رجوعه وخلى سبيله﴾ او كه رجوع وكړه مقر بالزناء عن اقراره يعني يا په قول كي چي ووايې ما درواغ ويل، او يا په فعل سره لكه چي وتښتي او دا رجوع يې د مخه تر شروع په حد سره دده وه او يا په منځ كې د حد نو قبوله دي كړه سي رجوع دده او لار دې ور ايله كړي يعني خوشي دې كړي، ولي ددغه سړي رجوع احتمال د صدق او كذب لري لكه اقرار چي احتمال د كذب او صدق درلودي، او دده سره خو څوك دعوه نه لري ولي چي حد زنا خالص حق الله دي، نو شبه پيدا سوه.

**فائده**:- كه په اقرار كي حق العبد وي د هغه اقرار څخه رجوع نه ده صحيح لكه اقرار په قتل النفس عمداً سره د هغه اقرار څخه په رجوع

سره قصاص نه ساقطېږي، ولي چي ولي د مړي يې مكذب د رجوع دي وكذالك حد القذف.

قال ﴿وينبغى للامام ان يلقن المقر الرجوع﴾ او مستحب ده امام لره چي تلقين دي كوي يعني په خوله كي دي وركوي د اقرار كونكي په زنا سره رجوع د اقرار څخه د زنا وبل شي ته.

﴿ويقول لـه لعلك لمست او قبلت﴾ او داسي دي ورته وايې چي شايد تابه دا ښځه مس كړې وي يعني په شهوت سره. او يا به دي مچه ځندي اخستېوي مثلاً، يا به دي فرج ته ددې په شهوت سره كتلى وي.

پوه سه:- چي غرض په دې تلقين كي دفع د حد ده په حديث كي د بخاري راغلي دي چي عليه السلام وماعز ته وويل لعلك قبلت او عمزت او نظرت، قال ﷺ ادروا الحدود ماستطعتم.

قال ﴿والمرئة والرجل فى ذالک سواء﴾ ښځه او نر په دغه كي يعني په ډول كي د حد او په قبول كي د رجوع سره برابر دي، هدايه وايي ولي چي نصوص ددواړو على السواء مشتمل دي.

قال ﴿غير ان المرئة لاتنزع عنها ثيابها الا الفرد والحشو وان حفر لها فى الرجم جاز﴾ لكن دا فرق يې سته چي د ښځي څخه دي كالي نه كاږي د درو وهلو په وخت كي لكه د نر څخه چي كنبلې ولي بدن د ښځي خو ټوله عورت دي، نو چي كالي ځندي وكاږي مثلاً قميص او پوړني نو كې څه هم پرتوګ وريږېږي نو هم كشف عورت لازمېږي، مګر پوستين كه يې اغوستى وو او يا داسي قميص چي په منځ كې پنبه وه هغه دي ځندي وكاږي ولي د هغو په لېريكولو كي

کشف العورت هم نه راځي، او رسیده د الم زاجر و بدن ته دديچیمقصود د حد څخه دي هم راځي.

مسئله:- ښځه چي په دُرو وهي په ناسته دي ووهي، ولي د ولاړي په وهلو کي لازماً کشف د عورت راځي، وهکذا ورد فی اثر علی ﷺ، او که د رجم په وخت کي ښځي ته مثلاً تر نامه پوري غار جوړ کي او دا پکښي ښځه کړي رواده بلکه درویش وایي چي مستحب ده، ولي چي په حدیث کي راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام چي غامدیه زانیه په رجم کوله تر تیو پوري یې په غار کي ښځه کړه، او حضرت علي ﷺ چي شراحه همدانیه ښځه رجم کوله هم یې غار ورته وکینی، بلکه عین ممکنه ده چي مرجومه ښځه دي د حفاظت د مخ او سترګو د ډبرو څخه قمیص پر سر راپورته کړي او خیټه دي لڅه کي بلکه احتمال لري چي پرتوګ دي وکاږي او پر سر او مخ دي واچوي، نو په غار کي ښخول ددې د پاره د ښه ستر العورت زمینه ده، والله اعلم بالثواب.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا یقیم المولی الحد علی عبده او امته الا باذن الامام﴾ او نه سي جاري کولای بادار حد پر خپل مریي او مینځه باندي، مګر په اجازه د امام یعني یا نائب د امام، او امام شافعي رحمه الله وایي چي جاري کولای یې سي ولي چي بادار ولایت مطلقه لري پر مریي یا مینځه باندي لکه امام بلکه تر امام بالا بادار تصرف کولای سي، مثلا بادار مریي یا مینځه خرڅولای یا چا ته په هیبه کي ورکولای سي، او د خپلي مینځي سره وطي کولای سي، او امام دا یو کار نه سي

کولای، نو دی وایي حد د مریي لکه تعذیر دي پر یوه بد کار باندي د مریي چي بادار دغه تعذیر بېله اجازې د امام ومریي ته ورکولای سي.
موږ وایو چي په حدیث شریف کي راغلي دي، اربعة الى الامام" او علیه الصلوة والسلام د هغو څلورو شیانو څخه یو حد ذکر کړي، او بل دلیل دادي چي حد خالص حق الله دي چي حکمت الهي په هغه کي خلاصول د جامعه اسلامیه دي د فساد څخه نو ځکه په اسقاط د بندګانو نه ساقطېږي نو چي حد حق الله دي نو د هغه اجراء په قدرت کي د نائب الشرح دي چي امام دي او یا نائب د امام، بخلاف التعذیر لانه حق العبد نو ځکه کوچني ته تعذیر روا دي مع ان قلم التکلیف الآلهی مرفوع عنه، هدایه درویش.

قال ﴿وان رجع احد الشهود بعد الحکم قبل الرجم ضربوا الحد وسقط الحد عن المشهود علیه﴾ او که رجوع وکړه یوه د شاهدانو پس له حکمه څخه یعني په رجم سره ددوي د شاهدي په اثر، او د مخه تر رجم نو ټولو شاهدانو ته دي حد قذف ورکړي او ساقط سو حد د رجم د مشهود علیه څخه او دا هم مذهب دي د امام اعظم او امام ابو یوسف رحمه الله او امام محمد رحمه الله وایي چي یوازي دي هغه راجع ته حد ورکړي.

پوهنه:- چي سقوط د رجم د مشهود علیه څخه په اتفاق زموږ د آئمه ثلاثه دي، ولي چي شاهدان د رجم څلور پوره نه دي وعلیه مدار الرجم کما مر.

مسئله:- که رجوع وکړه يو شاهد د مخه تر حکم په رجم نو حد قذف دي وټولو ته ورکړه سي ولي خبري د ټولو شاهدانو خو شاهدي ګرځي چي په قضا سره د قاضي متصله سي نو د مخه تر قضا ددوي ټولو خبري په باره کي د زنا قذف دي ځکه ټولو ته دي حد قذف ورکړي، وباقی التفصيل والدلائل فی الهدايه والجوهره وفتح القدير وغير ها من الشروح القدوري.

قال ﴿وان رجع بعد الرجم حد الراجع وحده وضمن ربع الدية﴾ او که رجوع د شاهدي څخه وکړه يو شاهد پس له رجم د مشهود عليه نو يوازي ود راجع شاهد ته دي حد قذف ورکړي او څلورمه د ديت دي تاوان ځندي واخلي.

مسئله:- که بل شاهد رجوع وکړه هغه ته دي هم حد قذف ورکړي او څلورمه د ديت دي تاوان ځندي واخلي وهکذا غرامت ولي لازمېږي ولي دغه نفس د مرجوم چي تلف سو ددوي ټولو په شاهدي سره نو چي يوه رجوع وکړه نو هغه ګويا اقرار وکړي په تلف د نفس د مرجوم ناحقه وو، نو واجب دي پر ده تاوان په اندازه د ديت دده د حصې چي څلورمه د ديت ده او حد قذف وده ته ورکول مذهب دي د آئمه ثلاثه زموږ او امام زفر رحمه الله وايي چي پر راجع حد قذف نسته، والتفصيل الدلائل فی الشروح.

قال ﴿وان نقص عدد الشهود عن اربعة حدوا جميعاً﴾ او که کم ... عدد د شاهدانو تر څلورو يعني درې کسه شاهدان د زنا تېر سوه

مګر څلورم شاهد نه وو، نو دغو درو شاهانو ته دي حد قذف ورکړي ولي چي څلورم شاهد نه سو پیدا نو پاته درې ګرده قاذفان دي، هدایه.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿واحصان الرجم ان يكون حراً بالغاً عاقلاً مسلماً قد تزوج امرئة نكاحاً صحيحاً ودخل بها وهما على صفة الاحصان﴾ او احصان چي په رجم کي شرط دي اوه (٧) شیان دي اول (١) داچي هغه مرجوم به حر وي لقوله عليه الصلوة والسلام چي په رجم کېږي نر په زنا د مینځي سره، او مریي نه په رجم کېږي په زنا سره د حرې، او دوهم (٢) داچي هغه زاني به بالغه وي ولي چي کوچنی اهل د عقوبت نه دي، او دریم (٣) عقل دي ولي لېونی هم اهل د عقوبت نه دي، او څلورم (۴) شرط یې اسلام دي لقوله عليه الصلوة والسلام من اشرك بالله فليس بمحصن.

**پوهنه**:- چي مراد د شرك څخه عام دي که ظاهراً وي لکه مشرکین معهودین او که حکما وي او که حکما وي لکه یهود او نصاری لقولهم عزیر ابن الله وعیسی ابن الله، نو یهودي او نصراني هم محصن نه دي.

**پوښتنه**:- په حدیث کي د بخاري وغیره راغلي دي چي علیه الصلوة والسلام پر یوه یهودي چي زنا یې کړې وه حکم د رجم وکړي؟

**ځواب**:- علیه الصلوة والسلام پر یهودي حکم د رجم په مطابق د تورات وکړي کما فی البخاري وغیره او هغه منسوخ سو، او پنځم (۵) شرط یې دادي چي ده به نکاح کړې وي په صحیح نکاح سره، یعنې ناکح په نکاح فاسده سره هم محصن نه دي لکه ناکح بېله شاهدانو، او شپږم (۶) شرط یې دخول په هغه مانیه دي یعنې جماع به یې هم ورسره

کړي وي، نو که يو سړي بعد النکاح الصحيح او قبل الوطي زنا وکړه هغه محصن نه دي، اوم (۷) شرط يې بقاء ددوي ده يعنې زاني او زانيه پر صفت د احصان تر وقت د زنا، نوکه يو سړي چي ټوله شرائط پکښې وه لکن په وخت کي د زنا لېونی سوي وو هغه محصن نه دي، فتذکر هذه الشرائط ودلائلها وفوائدها.

**فائده**:- مصنف رحمه الله لفظ د احصان الرجم ووايه ولي په مقذوف کي چي احصان شرط دي هغه پنځه دي، بلوغ، عقل، اسلام، حريت، پاك والی د فعل څخه د زنا.

قال ﴿**ولا يجمع فى المحصن بين الجلد والرجم ولايجمع فى البكر بين الجلد والنفى الاان يرى الامام ذالک مصلحة فيضربه على قدر مايرى**﴾ او نه جمع کېږي په محصن زاني کي په دُرو وهل او رجم کېده ولي د دُرو وهل يې بې فائده دي، او عليه الصلوة والسلام هم په ماعز رضي الله عنه او په غامديه ښځه کي دواړه نه دي سره جمع کړي بلکه په رجم سره يې اکتفاء کړې ده، او دغه رنګه جمع والي نه کېږي په زنا کي دَ بکر يعنې چي محصن نه وي په مابين د دُرو وهلو او د نفي، يعني د وطن څخه فرار کول مګر هغه وخت که امام دا فرار دده مصلحت وباله نو دي دی ورروسته تر جلد د وطنه وشړي، په هغه اندازه د زمانې چي امام يې لازم بولي.

**ښوونه**:- چي دليل د عدم جمع مذکور دادي چي خدی پاك داسي فرمايلي دي، الزانية والزانی فاجلدوا کل واحد مئاة جلدة" نو دا معلومه

سوه چي د بكر زاني تولـه حد جلد دي ولي كه تغريب په حد كي داخل واى نو رب جل وعلى به تصريح په كړې واى.

پوښتنه:- پـه حديـث صحيح كي راغلي دي، البكر بالبكر جلد مئاة وتغريب عام" نو دا حديث مبارك خو صريح دي په دې كي چي تغريب په حد كي د بكر جزء دي؟

ځواب:- فقهـاء د مذهب وايي چي دا حديث منسوخ دي ولي چي په دغـه حديـث مبارك كي بل جزء داسي دي، الثيب بالثيب" يعني محصن ومحصنة جلـد مئاة ورمى بالحجارةكذا فـي الهدايـة او هغـه جزء خـو منسوخ بالاتفاق دي كما مر من عدم اجرائه ﷺ فى ماعز والغامديه فكذا هذا الجزء، مګر بيا هم فقهاء وايي كي امام د سياست د لاري په تغريب كي فـائده وليدلـه نـو تعزيـراً لاحدا دي بكـر زانـي تغريـب كـړي، ولي په بعـض اشخاصـو كـي تغريـب ډېر مفـيد واقع كېږي په سبب د لوي پېغور وزانـي تـه پـس لـه عـود ووطـن تـه، او بعض فقهاء معنا د تغريب په حبس سره كـوي، نهايـه والاوايـي چـي دا ډېر ښـه تفسـير او سـاكتونكي د زنـا دي، انتهي.

ژوبښ وايي:- چـي دا تفسـير د لفظ د تغريـب لغةً ډېر لري دي كما لايخفـى، او صاحب د مجمع الانهر هم دا تفسير نه دي خوښ كړي، والله اعلم بالصواب.

قال ﴿واذا زنـى المريض وحده الرجم رجم﴾ او كه زنا وكړه ناجوړه سړي او حد دده رجـم وو يعنې محصن وو نو په رجم دي سي، يعنې رجم دي د صحت تـر وختـه نه ځنډوي، ولي خو دى د اتلاف مستحق دي نو د

څه د پاره يې رجم څنډوي بلکه ناجوړی ښه دي چي په ناجوړي کي رجم سي چي ژر به مړ سي، هدايه، دروېش.

قال ﴿وان كان حده الجلد لم يجلد حتى يبرء﴾ او كه حد دده وهل وه نو په ناجوړي كي دې نه پر جاري كوي تر هغو پوري چي جوړېږي ولي چي نبايده په سبب د ناجوړی د دُرو وهلو څخه مړ نسي او دی خو د وژلو مستحق نه دي، لهذا كه پر چا قطع د يد مستحق وه يعني د غلا په سبب نو په ډېر يخ او يا په ډېره ګرمي كي دې لاس نه ورېږې كوي لخوف السرايته الى العضو، ه ، ع.

قال ﴿فاذا زنت الحامل لم تحد حتى تضع حملها﴾ او كه زنا وكړه اميد واره ښځي نو تر هغو دې نه په حد كوي چي لنګېږي ولي تاچي حد ددې مفضي نه سي وتلف ته د مافى البطن ددې مع انه نفس محترمه.

﴿وان كان حدها الجلد فحتى تتعالى عن نفاسها﴾ او كه حد د حاملې جلد وو نو تر هغو دې نه پر جاري كوي چي د نفاس څخه خلاصېږي ولي جي نفاس په واقع كي يوه ناجوړي ده، نو كه په نفاس كي پر دې حد الجلد جاري سي د نفاس په وخت كي شايد مړه به سي يعني كه حد ددې رجم وو نو څنګه چي لنګه سوه رجم دي پر جاري كړي ولي چي مرګ پردې مستحق دي نو كه مړه سي نو څه پروا لري.

قال ﴿واذا شهد الشهود بحد متقادم لم يمنعهم عن اقامته بعد هم عن الامام لم تقبل شهادتهم الا فى حد القذف خاصة﴾ او كه شاهدي ادا كړه په حد سره يعني په سبب د حد زنا يا قذف يا

سرقه وغیره چي حد یعني د سبب یې ډېسر وخت تېر سوی وو، او حال هم دا وو چي دوي د امام د حضور څخه لري هم نه وه نو نه قبلېږي شاهدي ددوي مګر په حد قذف کي خاص یعني په هغه کي تقادم مانع د قبوله څخه د شاهدي نه دي، حاصل دادي که شاهدان د بالفور د شاهدي څخه یې مانع په بعد مسافت وو د امام څخه خو په ډېر وخت تېرېدو سره شاهدي د قبوله څخه نه لوېږي یعني قبلېږي او که بعد المسافت مانع نه وو نو یې شاهدي نه قبلېږي په دلیل ددې چي شاهدانو چي سبب د حد ولېدي لکه زنا مثلا نو ددوي خوښه دد که شاهدي ادا کوي او که پرده پر اچوي او پرده اچول یې افضل هم دي. نو دوي چي شاهدي وځنډول مع عدم المانع وهو بعد المسافت عن الامام، نو ظاهراً داسي معلومېده چي دوي د پردي لار خپله کړه لکن پس له ډېري مدې چي دوي د شاهدي و اداکولو ته اماده سوه معلومه سود چي ددوي او د مشهود علیه تر منځ یو بغض او عداوت پیداسوی دي، ولاشهادة لهم عند الفقهاء.

**فائده**:- زمانه د تقادم په نبز د امام ابو یوسف او امام محمد رحمه الله مقدره ده په یوه میاشت سره، او بعض فقهاء وایي چي زمانه د تقادم شپږ میاشتي ده، والیه مال الامام الطحاوي رحمه الله، اوبعض علماء وای چي دا په راءیه پوري د قاضي اړه لري، قال فی الشرح الکنز والاصح هو الاول، او زمانه د تقادم په شرب الخمر او په نورو مسکراتو کي مقدره ده په لېریوالي د خولې د بوي د چینبونکي، او امام محمد رحمه الله هغه هم مقدر په میاشت سره بولي، هو الارجح.

**پوښتنه**:- چې امام شافعي رحمه الله وايي چې حد په تقادم سره نه باطلېږي لکه حقوق الناس يعني هر وخت چې شاهدان شاهدي ادا کړي په سبب د حد هغه شاهدي دوي منظوره وي او مشهود عليه به په حد کېږي وبه قال مالك واحمد رحمه الله.

**فائده**:- که مانع د فوري شاهدي ادا کولو څخه يا بعده مسافت وود امام څخه يا ناجوړي او مرضي د شاهدانو وه، هغه شاهدي ددوي قبوله بالاجماع ده.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن وطاء امرائة اجنبية فى مادون الفرج عزر﴾ او که چا وطي کړه بېگانه ښځه په ماسوا کي د کوس يعني په کوناتو کې ځان انزال کړی او يا پر نس د هغې ځان انزال کړي تعزير دي ورکړه سي يعنې د قاضي د خوا څخه ولي چې منکر او بد کار د شرع څخه مخالف يې وکړی.

قال ﴿ولا حد على من وطاء جارية ولده او ولد ولده وان قال علمت انها على حرام﴾ او حد نسته چې وطي کړي خوك مينځه د خپل ولد که نر ولد يې وي او که ښځه، نو ځکه مصنف رحمه الله لفظ د ولد ووايه ابن يې نه ووايه، او يا يې وطي کړه مينځه د ولد الولد که څه هم دی ووايي چې زه پوهېدم چې دا مينځه ماته حرامه ده، دليل يې دادي چې دا وطي ناشي د شبهي څخه دي چې هغه شبهه په دې قول د عليه السلام ثابته ده، انت ومالك لابيك" والشبهة مسقطة للحد ولا اعتبار لعلمه بالحرمة.

قال ﴿واذا وطاء جارية ابيه او امه او زوجته او وطاء العبد جارية مولاه وقال علمت انها على حرام حد﴾ او كه چا وطي كړه مينځه د پلار او يا نيكه، او يا يې وطي كړه مينځه د خپل مور، او يا د خپل ماينې مينځه، او يا وطي كړه مريي مينځه د بادار دده او دا يې هم وويل چي زه پوهېدمه چي دغه مينځيانې وماته حرامي دي نو حد دي وركړي، ولي دلته خو نه شبهه د حديث د خوا سته او نه دده د ظن د خوا، او كه دې واطي وويل چي زما غالب گمان داوو چي دا مينځيانې وماته په وطي روا دي نو حد دي نه وركوي،

قال ﴿وان قال ظننت انها متحل لى لم يحد﴾ ولي په دې صورت كي شبهه دده د ظن سته يعني په منځ كي د پلار او مور او زوي فراخي سته په مالي شيانو كي او داغه رنگه د مېړه او ماينې په منځ كي هم فراخي سته په اموالو كي او ا غه رنگه په منځ كي د مريي او د بادار فراخي سته په اموال كي نو دده دغه ظن مستند و دليل ته د تبسط بينه وبين هولآء فيسقط عنه الحد بتلك الشبهة المستند الى الدليل المذكور.

قال ﴿ومن وطاء جارية اخيه او عمه وقال ظننت انها حلال لى حد﴾ او كه وطي كړه چا مينځه د خپل ورور، او يا د اكا مينځه او دا يې وويل چي زما غالبه گومان داوو چي دا مينځه ماته حلاله ده نو حد دي وركړه سي، ولي ورور وبل ورور ته او يا اكا و وراره ته اونه مالي تېرى نه كوي بلكه په مال مضائقه سره كوي نو دا گومان د شبهى په سقوط كي د حد اعتبار نه لري.

قال ﴿ومن زفت اليه غير امرئته وقالت النساء انها زوجتك فوطئها فلاحد عليه وعليه المهر﴾ او که یې یو سړي ته وروستل غیر د مایني ښځه دده بله ښځه.

**پوره تشریح**:- چې زفاف په اوله شپه د مایني وروستل بولي مېړه ته چې دا کار د ښځو پر زمه دي چې ماینه مېړه ته ورولي لکن دا زفاف که پس لـه واده وي، یعنې د مېړه په کور کې خو دا اشتباه ډېره بعیده ده ولې چې د زفاف زمه واره د مېړه په کور کي د مېړه قریبانې ښځې دي لکهمور خور وغیره نو هغه خپله ناوې پېژني نو چېري پردۍ ښځه خپل قریب ته ورولي، بلکه ددې اشتباه د پلار په کور کې د ښځې ممکنه ده. یعنې چې یـو سړی پښه خلاصه کړي په اصطلاح د پښتنو او د خسر کره ورسي نو اوله شپه چې ناوې وروليد خسر د کور ښځې یې ورولي نو امکان لري چې د هغه ځای ښځو دي دغه دسیسه برابره کړې وي د یو غـرض د پاره، او ښځـو ومېړه ته وویل چې دغه ښځه چې موږ راویستله ستا ماینه ده، نور خو مېړه خپل ماینه تر اوسه نه ده لیدلې نو هغه راویستلې ښځه یې وطي کړه او هغې بېشرمي هم نه ورته ویل چې زه پردۍ ښځه یم ستا ماینه نه یم، لکن وروسته هغې ښځې ورته وویل چې زه پردۍ ښځه یم تـا زنـا راسره وکړه، او یا بل چا په اصلي موضوع خبر کړي نو پر مېړه حد نسته ولې چې دا اشتباه په محل کې د وطي پیدا سوه لکن مهر ددغې ښځې پر لازم دي، ولـې چې په اشتباه څوك پردۍ ښځه وطي کړي د هغې ولور پر لازم دي یعنې مهر المثل.

فائده:- مصنف رحمه الله صيغه د جمع استعمال کړه يعنې قالت النساء ددې څخه دا سي معلومېږي چي ديوې ښځي اخبار چي دا ستا مانيه ده مسقط د حد نه دي، لکن ظاهر کلام الکنز پر دې دلالت کوي چي د يوې ښځي خبر هم په دې ځای کي اعتبار لري، يعنې حد په ساقطېږي ويدل عليه کلام ابن الهمام رحمه الله په شرحه کي د هدايه هم پر دغه دلالت کوي او صحيح هم دغه ده ولي چي نکاح د معاملاتو څخه ده او خبر د يوه سړي په معاملاتو کي معتبر دي کما فی کتب الفقه، او توجيه د قول د قدوري داده چي الف لام تعريف په لفظ کي النساء د پاره د جنس دي نو جمعيت يې باطل دي کما فی کتب النحو.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن تزوج امرئة لاتحل له نکاحها فوطائها لم يجب عليه الحد﴾ او که چا په نکاح کړه داسي ښځه چي د هغې نکاح وده ته نه وه روا، لکه رضعي خور مثلا نو يې وطي ورسره وکړې نو پر ده حد نه واجبېږي او دا قول هم د امام اعظم رحمه الله دي دی وايي چي ضرب شديده دي ورکړي که دی په تحريم حبر وو، دا ضرب تعزيراً دي، او امام ابو يوسف، امام محمد، او امام شافعي رحمه الله وايي که دی عالم بالحرمت وو نو حد دي ورکړه سي، والدلائل للفريقين فی الشروح المبسوطه.

قال ﴿ومن وجد امرئة علی فراشه فوطئها فعليه الحد﴾ او که چا پر خپل ځای ښځه پيدا کړه نو يې وطي ورسره وکړې او هغه دده مانيه نه وه نو پر ده حد لازم دي، ولي وجود د ښځي دده په کور کي او دده په ځای کي خو شبهه د محل نه ده ولي ګاهي خور دده پر ځای بې

اختياره خوب ورسي او بيده سي او کېداى سي چي ښځانه مېلمنه دده پر ځاى بيده سوې وي.

قال ﴿ومن اتى امرئة فى الموضع المكروه او عمل عمل قوم لوط فلا حد عليه عند ابى حنيفة رحمه الله وقالا رحمهما الله تعالى هو كا لزناء فيحد﴾ که ورغلى ښځي ته که يې خپل ماينه وه که ښځانه ښځه وه يعنې وطي يې ورسره وکړې په مکروه ځاى کي يعنې په دبره کي، چي دې ته لواطت صغرى وايي او يا عمل وکړي عمل د قوم لوط يعنې نر د نر سره کار وکړي نو پر ده حد نسته په دواړو صورتو کي په نېز د امام اعظم رحمه الله، او ياران وايي چي دا لواطت صغرى او کبرى لکه زنا داسي دي نو حد دي ورکړه سي يعنې حد زنا نو که غير محصن وو په دُرو دې ووهي او که محصن وو په رجم دې کړه سي او د يارانو مذهب يو قول د امام شافعي رحمه الله هم دي.

**ګرونېدن وايي:-** چي چونکي په فعل د لواطت د ماينې يا د بل نر سره په اوسنى زمانه کي ډېر مسلمانان په مبتلا دي نو بايد ښه تحقيق يې وکړه سي، لعل الله ينقطع به بعض الناس فيتوبوا عن الفعل المذکور.

**واوره:-** چي امام شافعي رحمه الله په خپل بل قول کي وايي چي که نر د نر سره لواطت وکړي دواړه دي قتل کړه سي، لقوله عليه الصلوة السلام اقتلوا الفاعل والمفعول" او ياران وايي چي لواطت په معنا کي د زنا دي ولي چي لواطت خو قضا د شهوت ده په محل شني کي چي دبره ده على سبيل الکمال ولي خومره چي محل د وطي تنګ وي هغومره فاعل ته

خوند ورکوي، او په دې کې خو هیڅ شك نسته چې دبره تر فرج ډېره تنګه ده او دا کار د فاعل محض حرام دي بالنص القرآني. او نطفه ضائع کول دي په دبره کې.

امام اعظم رحمه الله وايي چې لواطت زنا نه ده ولې که زنا واى نو ولې صحابه کرامو رضي الله عنهم په موجب او حکم کې د لواطت کبرى اختلاف کوي. حتى چې بعض صحابه وايي چې په اور دې وسوځي. او بعض وايي چې لاسونه او پښې دې ورورتړي او دېوال دې پر راونړوي. او بعض وايي چې سر دې کښته کړي او د يو لوړ ځاى څخه دې را ايله کړي او په ډبرو دې پسې وولي، وغير ذالك" او نه دي په معنا کې د زنا ولې چې په لواطت کې اشتباه د انسانانو نه راځي او نه اضاعت د ولد سته. او هغه چې امام شافعي رحمه الله يې روايت وکړی يا محمول پر سياست دي او يا محمول دي پر هغه چا چې دی دا کار يعنې لواطت روا بولي. مګر امام اعظم رحمه الله وايي چې ښه سخت تعزير دي ورکړه سي، هدايه مع الزياده، او په فتح القدير کې وايي چې په بندي خانه کې دې واچوي تر هغه وخته چې توبه کاږي او يا مري.

مسئله :- که يو سړی عادت په لواطت وو امام دې قتل کړي که محصن وي او که غير محصن وي، كذا فى مجمع الانهر.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن وطاء بهيمة فلا حد عليه﴾ او که چا وطي کړه چار پايه لکه خره مثلاً چې تر لاس لاندې حيوان دي نو پر ده حد نسته ولې دا خو زنا نه ده نه حقيقةً او نه حکماً.

قال ﴿ومن زنى فى دار الحرب او فى دار البغى ثم خرج الينا لم يقم عليه الحد﴾ او كه چا زنا وكړه په دار حرب كي يا د باغيانو د تسلط په ځاى كي او بيا دغه زاني راووتي د دار حرب او يا د باغيانو د ځاى څخه نو په دار اسلام كي دي حد نه پر قائموي، ولي د حد زنا حكم د قضات المسلمين د خوا صادرېږي په اول وخت كي د زنا، او په هغه وخت كي د قضاتو د اسلام حكم پر دار حرب او دار البغات باندي نه چلېږي نو په هغه وخت كي حد ساقط سو والساقط لا يعود.

**درويش وايي**:- غرض نقشيست كه ازما ياد ماند "

كه هستي رانمي بينم بقائي "

مگر صاحب دلي روز رحمت

كند درحق اين مسكين دعائي،

اللهم اغفرلى ذنوبى كلها

دوستان زما دي خوشحاله او اباد وي دشمنان خراب باد

نه د چا سره حسد كړم او نه حاسد يم حاسدان ذليل باد

چي په بدو ستركو ما درويش ته گوري دا بد خوا حقير باد

زما شاگرد چي سي منكر د شاگردۍ يې دا شاگرد خراب باد.

د حضرت ايوبي د **تفسير شريف** شروع هم سوې ده ستا سو محترمينو څخه هيله كېږي چي د تفسير د پوره كېده سره سره د حضرت ايوبي د صحت دعا گو ووسئ

# ﴿باب حد الشرب﴾

دا باب دي په بيان کي د حد شرب يعنې حد د چښلو د شرابو.

**پوښتنه**:- چي چونکه زنا ډېر قبيح فعل وو او عذاب دنيوي يې تر شرب الخمر بالا وو، او وقوع د زنا په شهوت نفساني ډېره وه تر شرب الخمر نو ځکه مصنف رحمه الله باب الزناء تر باب شرب الخمر د مخه کړه.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن شرب الخمر﴾ او که چا وچښل شراب که څه هم يو څاڅکی وي يعنې سکر پکښې شرط نه دي ولي چي حرمت د شرابو خو قطعي دي، او حرمت د نبيذ ظني دي نو بېله سکره حد نه دي پر لازم.

**پوښتنه**:- چي صاحب هدايه وايي چي من د الفاظو څخه د عموم دي، نو زمي، ګونګی، کوچنی، او لېونی هم تر لاندي دي او سره ددې چي پر دغو کسانو خو حد نسته، نو اولی داوه چي داسي يې ويلي وای، ومسلم ناطق، مکلف شرب آه.

**درويش وايي**:- چونکه مبني د متونو پر اختصار ده او دا شرطونه مشهور وه نو ځکه صاحب هدايه اولی وويل صواب يې نه ووايه.

قال ﴿فاخذ وريحها موجودة فشهد الشهود عليه بذالک او اقر وريحها موجودة فعليه الحد﴾ نو ونيول سو د خلکو د خوا څخه او بوي د شرابو يې د خولې څخه ولاړېدي يا د سکر په حال کي يې راوستي قاضي ته، نو شاهدانو شاهدي اداء کړه پر ده باندي په چښلو د شرابو، او يا شارب الخمر خپله اقرار وکړي د شرابو په چښلو او بوي د

شرابو يې هم تلي، نو پر ده حد شرب لازم دي ولي جنايت د شرب پر ده ثابت سو يا په شاهدانو سره او يا په اقرار سره دده، او وخت هم ډېر نه دي تېر سوی ولي دخولې يې د شرابو نجس بوي ځي، لقوله عليه الصلوة والسلام من شرب الخمر فاجلدوه فان عاد فاجلدوه، كذا فى الهدايه.

قال ﴿ومن اقر بعد ذهاب رائيحها لم يوحد﴾ او كه چا اقرار وكړي په شرب الخمر سره پس له عدم وجود د بوي د شرابو نو دي نه په حد كېږي او په نېز د امام محمد رحمه الله دي حد وركړه سي.

﴿ومن سكر من النبيذ حد﴾ او كه سړي ته مستي پېښنه سوه د نبيذ د چښلو څخه په حد دي كړه سي، وقد مر ان السكر ليس بشرط فى الخمر بل شرب قطرة منها كشرب الدن بخلاف غيرها من الانبذة.

توضيح:- چي نبيذ ګاهي د وڅكو څخه جوړ وي په داسي ډول چي لږ يې ويشوي يعني د دوابنا حد ته يې نه ورسوي چښل يې روا دي تر څو چي خوږې وي، او كه يې جوش ډېر وركړي چي ختمه سوي چي ودې ته دوبنا وايي د شيخينو په نېز يې مادون السكر شرب روا دي، او په نېز د امام محمد او امام شافعي يې شرب نه دي روا، وعلى هذا القياس نبيذ التمر، عنايه، دليل د حد د سكر النبيذ هغه اثر دي چي عمر رضي الله عنه په حد كي هغه اعرابي چي د نبيذ په چښلو سره مست سوي وو.

قال ﴿ولا حد على من وجد منه رائحة الخمر او من تقيئاها﴾ او حد نسته پر هغه چا چي صرف يې د خولې د شرابو بوي ځي، او يا شراب قى كړي، ولي د بويه څخه د شرابو او د قي وهلو د

شرابو خو دا معلومېږي چي ده دي په خپل اختيار شراب نه وي چښلي وي ولي چي احتمال ددې سته چي بل چا دي په زوره په خوله کي ورتوي کړي وي، او دا امکان هم سته چي اوبه نه وي او دا سړی مجبور وو د ډېري تندي څخه نو ده شراب چښلي وي. فلا يحد مع الشك. جوهره، مع زياده.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ولا يحد السكران حتى يعلم انه سكر من النبيذ وشربه طوعا ولا يحد حتى يزول عنه السكر﴾ او نه په حد کېږي مست سړی تر هغو چي دا معلومېږي چي دده سکر د نبيذ څخه دي، او چښل د نبيذ يې په خپله خوښه سره کړي دي يعني چا په زوره نه دي په چښلي، او نه دي په حد کوي مطلق سکران تر هغو چي سکر دده زائل نه سي ولي مقصود د حد څخه خو اينده زجر ددد دي د مسکر د چښلو، او سکران چونکي زائل العقل دي په دې نه پوهېږي چي ما پر څه شي وهي، او دليل د اولي مسئلې دادي چي سکر خو کاهي د غير څخه د شرابو وي، وذالك لا يوجب الحد بلکه حد چي واجبېږي هلته چي دا معلومه سي چي دا سکر د نبيذ د چښلو له کبله دي، او پسله دې علمه دا معلومات هم ضروري دي چي نبيذ يې په خپله خوښه چښلي دي.

**درويش وايي**:- چي دا دوه معلومات به د سکران څخه وروسته تر پرسد کېدو منځ ته راځي.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿وحد الخمر والسكر فی الحر ثمانون سوطا يفرق على بدنه كما ذكرنا فی الزناء﴾ او حد د شرابو

يعني مطلقا که لږ وي او که ډېر وي کما مر من انه لا يشترط فی الخمر السکر، او حد د سکر يعني د نبيذ څخه اتيا (۸۰) درې دي په اجماع د صحابه وو ﷺ کذا فی العنايه، او پر جلا جلا ځايو باندي د شارب دې ووهي لکه د مخه چي تېر سوه په زنا کي يعني ماسوا د مخ، سر او فرج څخه.

**پوه سه**:- چي مشهوره دا ده چي کالي دي ځندي وکاږي تا چي الم د ضرب يې بدن ته ورسېږي او د امام محمد رحمة الله عليه څخه روايت دي چي کالي دي نه ځندي کاږي ولي چي حد شرب الخمر سپك دي تر حد د زنا فلا يقاس عليه.

قال ﴿وان کان عبداً فحده اربعون﴾ اوکه شارب مريي وو نو حد يې څلوېښت (۴۰) درې دي چي په حديث کي راغلي دي د موطا مالك رحمة الله عليه چي عمر، عثمان، او عبد الله ﷺ خپل مريان يې د شرب الخمر په حد کي څلوېښت درې وهله.

﴿ومن اقر بشرب الخمر او السکر ثم رجع لم يحد﴾ او که چا اقرار وکړي په چښلو د شرابو يا د سکر او روسته يې بېرته رجوع وکړه چي مانه دي چښلي نو نه په حد کېږي.

**پسوه سه**:- چي سکر په دې عبارت کي د سين او کاف په زور ويل کېږي چي هغه نبيذ التمر دي لنده وي اذا اشتد کذا فی العنايه، او سُکر په پېښ د سين مصدر دي کما فی العبارات السابقه.

قال ﴿ويثبت الشرب بشهادة شاهدين او باقراره مرة واحدة ولاتقبل فيه شهادة النساء مع الرجال﴾ او ثابتېږي شرب الحمر

وغیرها په شهادت د دوو شاهدانو، او داغه رنګه ثابتېږي په اقرار د شارب یو وار، اونه قبلېږي په شرب کي شاهدي د ښځو سره د نرو یعني چي یو نر او دوې ښځي وي ولي چي په هیڅ حد کي ښځو لره اعتبار نسته.

**درویش وایي:-** چي د شرابو چښل په اوسنۍ زمانه کي دومره عام سوه چي بعض په ډېره حاجیان چي په مجلس کي د کافرانو او ددوي په مهمانۍ کي حاضر سي نو دوي هم متابعةً للکفار شراب نوشي ورسره کوي، او وروسته تر شرابو چي ښځي رقص ورته کوي دغه حاجیان یې هم سیل کوي.

وشهد ذالك من بعض سراة الافغان المتحدین مع الامریکین فی مطار القندهار حین تسلطهم علی بلاد افغانستان.

قال الشیخ الاجل المعروف بالقدوري رحمه الله

## ﴿باب حد القذف﴾

دا باب دي په بیان کي د حد د قذف.

**پوه سه:-** چي قذف په لغت کي ویشتلو ته وایي او په شرحه شریفه کي نسبت کول دي د پاك انسان یعني د زنا څخه که نر وي او که ښځه وزنا ته یا صراحة یا دلالة.

**درویش وایي:-** چي په اوسنۍ زمانه کي د قذف کول په مسلمانانو کي ډېر شائع دي لکن دا اجراء د حد قذف په ټوله اسلامي نړۍ زما په نېز ډېخي وجود نه لري، مثلاً په پښتو کي یو سړي وښځي ته ووایي کوسي معنا یې داده چي ته کوس ورکوي پردیو خلکو

ته، او یا یو سړی وښځي ته وایي مرداري معنا داده چي زنا کاري او یا ښځي ته د ښکنځلو په وخت کي وایي چي ته ګرده ورځ په بازار کي کوس ورکوې، او یا یو سړی وبل سړي ته وایي د کوسي زو یعني د زنا کاري زو یا وایي د مرداري زو وامثال ذالك من الالفاظ القبيحة، نو قذف په خپل ځان کي ګناه کبیره ده او خپل حد لري کما سیئاتی لکن هیڅ ځوك په نبز د قاضي طلب د حد قذف نه کوي، بالکه غاية الامر په مثل د الفاظو د قاذف جواب ورکوي، والى الله المشتكى.

**فائده**:- مصنف رحمه الله حد قذف تر حد شرب وروسته کړي دي ددې سببه چي جرم د شرب الخمر متيقنه دي یا په شاهدانو سره او یا په اقرار د شارب او جرم د قذف یقیني نه دي ولي دا خو یو اخبار دي مثلا تا زنا کړې ده احتمال د صدق او کذب دواړو لري نو په صورت د صدق خو قذف نه دي البته په صورت د کذب قذف دي او حد یې حکم دي، ولهذا حد قذف سپك دي تر حد شرب الخمر لكن افسوس دادي چي مسلمانان ولي دغه الفاظ وایي چي ګناه کبیره یا حد پر جاري یا نه، هذا بعضه ماخوذ من العنايه وبعضه من تبصرة الفقير.

قال المصنف رحمه الله ﴿**واذا قذف الرجل رجلا محصنا او امرئة محصنة بصريح الزناء وطالب المقذوف بالحد حده الحاكم ثمانين سوطاء ان كان حراً**﴾ او که ویشتل وکړه یو سړي یعني نسبت وکړی بل سړي ته چي هغه د زنا څخه پاك وو، او یا وښځي ته چي هغه پاکه وه په صریح زنا سره یعني یا په مرادف د زنا په بله ژبه، او طلب وکړی مقذوف د حد د قاذف یعني پس له دې څخه چي قاذف

د اثبات څخه د زنا عاجزه سو په نېز د حاکم نو حاکم دي قاذف ته اتيا (۸۰) درې حد ورکړي، لقوله تعالى والذين يرمون المحصنات، وقال جل فى آخير هذه الآية فاجلدوهم ثمانين جلدة الآية" والمراد بالرمى المذكور نسبة الزنا بالاجماع، او په آيت شريف کي هم اشاره چي مراد زنا د حيث جل سلطانه " ثم لم ياتوا باربعة شهداء اذ هذا العدد مشروط فى الزنا كما مر" او د مقذوف مطالبه شرط د حد ده ولي دا حق دده دی چي پېغور د زنا د ځانه دفع کړي هدايه مع الزياده، لکن اتيا درې حد د حر دي.

قال ﴿يفرق على اعضائه ولا يجرد من ثيابه غير انه ينزع الفرد والحشو﴾ او دا دُرې به پر اعضاؤ ورکوي كما مر فى الزنا او مضروب دي نه لڅوي د جامې څخه لکن کې پوستين او يا د پنبه وو ډکه چپنه اغوستېوه هغه دي ځندي وکاږي ولي د هغه الم وبدن ته د قاذف نه رسېږي نو مقصود د حد چي انزجاء دي نه حاصلېږي لکن چونکه حد قذف اخف وو نوځکه دي کالي نه ځندي کاږي لکه په حد زنا کي چې ځندي کېږل.

قال ﴿وان كان عبداً جلده اربعين سوطاً﴾ او که قاذف مريي وو نو خلوېښت (۴۰) درې ضرب دي ورکړي، ولي چي عقوبت د مريي پر نيمايي د عقوبت د حر دي اتفاقا.

پوښتنه:- آيت کريمه د قرآن فاجلدوهم ثمانين جلدة خو عام دي حر او مريي دواړو ته شامل دي، نو د څه دليله عقوبت او حد د مريانو څلوېښت درې دي؟

**ځواب**:- دا آيت کريمه ددې برخې څخه معلومېږي، ولاتقبلولهم شهادة ابداً" ددې سببه چې عدم قبول د شهادت د قاذف خو په احرار پوري خاص دي د مريي که قاذف وي او که نه شاهدي يې نه قبلېږي، حاصل ما فى الجوهره.

قال ﴿والاحصان ان يكون المقذوف حراً بالغاً عاقلاً مسلماً عفيفاً عن فعل الزنا﴾ او احصان د قذف دادي چې مقذوف به حر وي، بالغ به وي، عاقل به وي، مسلمان به وي، او پاك د فعل څخه د زنا به وي.

**پوښتنه**:- چې عفيف و هغه چا ته وايي چې نه يې د ښځي سره وطي په زنا سره کړي وي او نه يې په شبهه سره او نه يې په نکاح فاسده سره کړي وي په ټوله ژوند کي دده يو وارهم، او که يې يو وار دا وطي مذکوره کړي وي هغه محصن نه دي او قاذف يې نه په حد کېږي لانه صادق فى النسبة المذكورة، واما اشتراط الاسلام فلقوله عليه الصلوة والسلام من اشرك بالله فليس بمحصن، واما البلوغ والعقل" چې شرط دي ولي کوچني او لېوني ته پېغور نسته،ولي چې فعل ددوي زنا نه بلل کېږي په شرع شريفه کي، واما اشتراط الحريت فلقوله تعالى فعليهن نصف ما على المحصنات من العذاب" يعني پر مينځيانو نيمى هغه عذاب دي چې پر محصناتو سته نو د محصناتو څخه حتماً حرائر مراد دي لمجيئها بمقابلة الاما، حاصل ما فى الهدايه مع زيادت الدروېش.

قال ﴿ومن نفى نسب غيره فقال لست لابيک او يا ابن الزانية وامه محضة ميتة فطالب الابن بحدها حد القاذف﴾ او

که چا نفي کړي نسب د بل چا او داسي يې ورته وويل ته نه يې د پلار زوي او يا يې داسي ورته وويل اې د زنا کاري مور زو، او مور د هغه محصنه وه يعني په هغه معنا چي د مخه تېره سوه او مور د هغه سړي مړه وه، نو زوي يې طلب د حد قذف د مور وکړي نو قاذف دي په حد کړه سي، اما فی القول الاول نسب خو د پلار څخه هغه هلته نفي کېږي چي مور يې زانيه وي نو ګويا ده داسي ورته وويل چي ستا مور زنا کړې ده، واما القول الثانی، هغه خو صريح دي په نسبت کي د زنا ومور ته دده نو چونکه مور يې مړه ده چي حد قذف حق ذ هغې وو نو زوي يې طلب د حد کولای سي، دفعاً للعار بسبب زنا الام.

قال ﴿ولا يطالب بحد القذف للميت الا من يقع القدح فی نسبه بقذفه﴾ او طلب د قذف د مړي د پاره نسي کولای مګر هغه څوك چي قدح يعني پېغور پيدا کېږي په نسب کي دده په سبب د قذف د مړي کما فی الصورتين المذکورتين ولې پېغور د مور متوجه و زوي ته هم دي په سبب د جزئيت کذا فی الهدايه.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿واذا کان المقذوف محصناً جاز لابنه الکافر والعبد ان يطالب بالحد﴾ او که وو مقذوف محصن روا ده زوي لره دده چي کافر دي، او مريي لره چي طلب د حد قذف د قاذف څخه وکي، دليل يې دادي چي دغه قذف پېغور دي کافر زوي لره او مريي لره هم، کذا فی الهدايه، وفی هذه المسئلة خلاف لزفر رحمة الله عليه.

قال ﴿وليس للعبد ان يطالب مولاه بقذف امه الحرة﴾ او نسته مريي لره چي طلب دي وکړي د حد د خپل بادار څخه په قذف کي دده

د مور چي حره وي، ولي چي مريي د خپل ځان د حد قذف طلب د بادار ځخه نسي کولای فضلا عن قذف امه.

قال ﴿وان اقر بالقذف ثم رجع لم يقبل رجوعه﴾ او که چېري يو سړي اقرار وکړي په قذف او بيا يې رجوع وکړه چي ما قذف نه دي کړي، رجوع يې نه قبلېږي ولي په دې اقرار سره حق د بل انسان چي مقذوف دي مربوط سو.

﴿ومن قال لعربی یا نبطی لم یحد﴾ او که وويل چا وعرب سړي ته چي اې نبطي نه په حد کېږي.

**پوهنه**:- چي نبط يو قوم دي په اطرافو کي د عراق چي د عربو په عقيده يو رزيل قوم دي، وجه عدم الحد" ولي چي مقصود ددغه سړي امکان لري چي دا وي چي ته په بدو اخلاقو کي او يا په عدم الفصاحت کي نبطي يې نه داچي ستا مور د نبطي سره زنا کړې ده، والحدود يندرئ بالشبهات، واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال، هدایه مع زیاده.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن قال لرجل يا ابن ماء السماء فليس بقاذف﴾ او کهٔ يو چا بل سړي ته وويل او زويه د اوبو د آسمان نو دی قاذف نه دي.

**پوهنه**:- چي ابن ماء السماء لقب دي د عامر بن حارثه ازدي، او سبب ددې لقب دادي چي ده به په ورځو کي د کاختي خپل مال پر خلکو داسي اوروي لکه باران، نو ممکنه ده چي ددې سړي دي دا مراد وي چي ته په سخا کي داسي يې لکه ابن ماء السماء، او داغه رنګه د منذر بن امرء القيس د مور لقب هم بنت ماء السماء وو په سبب د ډېر

ښائست او صفاء اللون نو دا هم ممکنه ده چي د هغه مراد دي دا وي چي ته په سبب د ښائست ابن ماء السماء يې فليس بقذف ايضاً.

قال ﴿واذا نسبه الى عمه او الى خاله او الى زوج امه فليس بقاذف﴾ او كه چا نسبت د سړي وكړي و اكا ته دده، يعنې ورته وويل اې د زيد زوو مثلاً او زيد دده اكا وو، او يا يې و ماما ته دده مثلاً زيد دده ماما وو، او يا ومېړه ته د مور دده مثلاً زيد دده د مور مېړه وو يعنې پلندر، نو دا سړي قاذف نه دي ولي چي اكا او ماما او پلندر ټولو ته مجازاً پلار ويل كېږي نو ددغه سړي دي هم معنا مجازي مراد وي.

قال ﴿ومن وطئ وطئا حراما فى غير ملكه لم يحد قاذفه﴾ او كه چا وطي وكړې داسي وطي چي حرامي وې په غير كي د ملك يعني مينځه يې نه وه نه په حد كېږي قاذف يې ولي چي پاك والى د زنا څخه چي عفت يې بولي په ده كي نسته، او بل قاذف په نسبت كي د زنا وده ته صادق دي ولي چي زنا وطي حرامو ته وايي كذا فى الهدايه ومزيد التفصيل فيها وفى شروحها.

قال ﴿والملاعنة بولد لا يحد قاذفها﴾ او هغه ښځه چي د مېړه سره يې لعان كړى وي په سبب د ولد، يعني مېړه نفي د ولد ددې د ځان څخه كړې وي نه په حد كېږي قاذف ددې يعنې چي نست د زنا ودې ته وكړي، ولي چي ولد ددې خو ثابت النسب د چا څخه نه دي.

مسئله:- كه پلار د كوچني يعنې مېړه د ښځي دعوه د ولد وكړه وروسته تر قذف د قاذف ودې ته، بيا هم حد پر قاذف نسته، او قاذف وروسته تر دعوى الاب قذف وښځي ته وكړي بيا په حد كېږي قاذف يې

فائدة قد مر اللعان فى بحث الزنا فراجعه لتعرف الفرق بين الصو
كذا فى الجوهره مع زياده.

**دروېشي وايي**:- چي مسائل د حد قذف په بحث پوري دېر ز
لري بايد هغه مباحث د متعلم په دماغ كي وي.

قال ﴿وان كانت الملاعنة بغير ولد حد قاذفها﴾ او كه ښځه
مېړه سره لعان كړي وو بيله ولده، يعني لـه نفي د ولد داغسي مه
ورته ويلي وه چي تا زنا كړې ده، نو بيا دي قاذف ددې په حد كړه سر
ولي دې خو د مېړه د قذف څخه ځان پـه لعان خلاص كي نو دا عفيف
ثابته سوه، نو د بل سړي نسبت ودې ته د زنا موجب د حد قذف دي

قال ﴿ومن قذف امة او عبدا بالزنا او قذف كافرا بالزنا
قذف مسلما بغير الزنا فقال يا فاسق او يا كافر او يا خبيث
عزر﴾ او كه چا قذف كړي وميـنځي ته يا مريي ته او يا كافر ته په
سره او يا مسلمان ته بېله قذف د زنا بل ښكنځل وكړه نو دا سړ
وويل اې فاسقه، يا اې كافره او يا اې خبيثه نو تعزير دي ورکړي يعني
حد دي نه وركوي، ولي چي مريي يا مينځه يا كافر خو محصن نه دي
كما مر فى باب الزنا، او هر چي مسلمان ته هغه مذكوره الفاظ په قذف
كي استعمال سوه هغه خو الفاظ موجبه د حد قذف نه دي ولي چي
قذف يوازي د زنا پـه نسبت سره خاص دي، لكن چونكه دا تهوله الفاظ
بـه عبد، امه او كافر كي او يا هغه نور الفاظ ومسلمان ته سبب د عيب
او دده آزار دي، نو ځكه دي تعزير قاضي وركړي، لكن په جوهره كي
چي تعزير دي د پاى درجې ته (۳۹) او يا (۷۵) دُرې على اختلاف

المذهبین کما سیئاتی خوا مخوا رسول لازم نه دي بلکه دا تعزیر موکول دي ورایه ته د قاضي.

قال ﴿وان قال یا حمار او یا خنزیرلم یعذر﴾ او که یو چا و یو سړي ته وویل چي اې حره او یا اې سرکوزې قاضي دي تعزیر نه ورکوي ولي چي قاذف په دغو الفاظو کي یقینا کاذب دي، او په مقذوف پوري عیب هم نه ملحقه کېږي نو عقوبت د تعزیر شرعي پر قاذف هم نسته، البته چونکه په دغو الفاظو کي ازار د مقذوف دي پکښې دي نو دې یا مقذوف عفوه ورکړي، او یا دي په دې نص عمل وکړي، وجزاء سیئة سیئة بمثلها" لکن عفوه افضل کار دي، لئلا یزداد الفتنة بینهما، درویش جوهره.

قال ﴿والتعزیر اکثره تسعة وثلثون سوطا واقله ثلث جلدات وقال ابو یوسف یبلغ بالتعزیر خمسة وسبعین سوطا وان رای الامام ان یضم الی الضرب فی التعزیر الحبس فعل﴾ او د تعزیر اکثره نهه دېرش (۳۹) درې دي، او کمه مرتبه یې درې (۳) دُرې دي او امام ابو یوسف رحمه الله وایي چي تعزیر دي ورسوي پنځه اویا (۷۵). درې ته او که چېري د امام رایه وه چي جوت کړي وه ضرب ته په تعزیر کي بندي کول دسړي ودې کړي ولي چي تعزیر پر رایه د امام موقوف دي او مقصود ځندي زجر دي، نو شاید د امام رایه به په بعضو اشخاصو کي دا وي چي یوازي ضرب به کفایت په زجر کي ونه کړي بلکه چي حبس ورضم سي نو به موثر واقع سي نو ځکه اجازه د حبس ورته سته.

**پوښتنه**:- چي په کم تر درې زجر نه راځي.

**فـائده**:- اول مذهب دي د طرفيـنو دوي وايـي چـي تعزيـر دي ځلوېښت تـه نـه رسوي ولـي تعزير پـه اجمـاع سره کمتر حد دي، او حد قـذف د مريي ځلوېښت درې دي نو تعزير دي يـوه دره تر هغه کم کړي چـي (۳۹) نهـه دېرش پاتـه سي، او امـام ابـو يوسـف رحمة الله عليه حـد قـذف د احرار اعتبار ورکوي ولي چي مصنف رحمة الله عليه ويلي دي.

قـال ﴿واشـد الـضرب الـتعزير﴾ او سخت د وهلو ضرب تعزير دي ولـي چي دا ضرب خفيف من حيث العدد دي نومن حيث الوصف دې نه سپکوي ولـي تاچـي مقصـود د تعزيـر چـي زجر دي فـوت نسـي، او په شدت کي اختلاف دي بعض فقهاء وايي چي شدت يې دادي چي پر يوه ځاى دې وهـي ، تفرق على الاعضاء دي نه کوي، بعض فقهاء وايي چي خودي يوازي ضرب دې سخت وي، وهو المختار لصاحب الهدايه.

قـال ﴿ثـم حـد الـزنا ثـم حـد الشـرب ثم حد القذف﴾ او تر تعزير وروسته حد زنا سخت دي او تر هغه وروسته حد الشرب الخمر دي ولي سبب دده متيقن دي، او وروسته حد قذف دي ولي چي سبب يي تهمت او نسبت د زنا دي محمتل د صدق او کذب دي کما مر.

قـال المصنف رحمة الله عليه ﴿ومـن حـده الامـام او عـزره فـمـات فدمه هـدر﴾ او کـه چا تـه امام حد او يا تعزير ورکړي د هغه په سبب محدود مړ سي وينه يې لغوه ده يعني ديت يا بل غرامت پر امام نسته ولي امام خـو پـه امر د شرعي شريفي دا کـار وکـړي، شرعي کارونـه مشـروط پـه سلامتيا نه دي اجماعاً.

قال ﴿واذا حد المسلم سقطت شهادته وان تاب وان حد الكافر فى القذف ثم اسلم قبلت شهادته﴾ او كه مسلمان ته حد قذف وركړه سو يعني په وخت كي د اسلام نو جزاء شاهدي دده ساقطه ده په هره موضوع كي چي وي، لقوله تعالى ولاتقبلوا لهم شهادة ابدا" او بل دا چي قاذف په ژبه سره چي پر مقذوف يې درواغ وويل د هغه د اثر په سبب په حد سو نو خداى ﷻ دده د ژبي مېوه چي قبول د شاهدي دى ځندي سلب كړه، كه څه هم توبه وكاږي د آينده قذف څخه. حاصل دا چي عدم قبول د شهادت د قاذف جزاء او متمم د حد ده زموږ په نېز او امام شافعي رحمه الله وايي چي قاذف توبه وكاږي بيا يې شاهدي قبلېږي لقوله تعالى الاالذين تابوا" موږ وايو چي دا استثناء راجع ده وقريب ته يعني قوله تعالى واولئك هم الفاسقون" نو په توبه سره يې فسق ولاړي، والحاصل چي خداى ﷻ د قاذف د پاره په دې آيت كي دوې جزاوي ذكر كړي دي اول ولاتقبلوا لهم شهادة ابدا" نو چونكه دا جزاء مؤكده په تابيد ده نو دا جزاء د قاذف څخه نه زائلېږي په توبه سره، او بله جزاء واولئك هم الفاسقون" دا جزاء چونكه په وروسته كي دا آيت لري الاالذين تابوا" نو دا جزاء د فسق په توبه سره زائلېږي فافهم، او كافر ته چي په حال كي د كفر حد قذف وركړه سي او بيا مسلمان سي د هغه شاهدي قبلېږي ولي چي دا نوى عدالت پسله حد قذف څخه پيدا سو، والله اعلم.

# ﴿كتاب السرقة وقطاع الطريق﴾

## دا كتاب دي په بيان كي د غلا د احكامو او د احكامو د لار وهنكو غلو

**ترويشې وايي**:- چي د سارق او قاطع الطريق بيان خو به په كتاب كي راسي انشاء الله تعالى، اوس دا واوره چي په پخوا زمانه كي غله دغه دوه قسمه وه، لكن په اوسنۍ زمانه كي يو بل قسم غله پيدا سوي دي چي د حكومت پر چوكي ناست وي او غلا كوي او دومره بې شرمه غله دي چي د خلكو په مخ كي د حاجت مندانو سره د رشوت د مقدار چنې وهي نه د حداى ﷻ څخه ببرېږي او نه د خلكو څخه شرمېږي، دا قسم غله د قومندان څخه نيولې قاضيان هم پكښې داخل دي، او لوى قدرت والا بيا د بيت المال څخه غلا كوي، او په پرديو بانكو كي هغه مبلغ سره جمعه كوي ولي چي ددوي په خيال دا چوكۍ ددوي د پاره موقتي دي د وطن او د رعايتو غم ددوي سره نسته، د مثال په توګه افغانستان چي د ډېري مدې راپه دې خوا مستقل دولت دي لكن تر اوسه نه يو كار خانه په ټوله افغانستان كي سته، او نه يو سړك چي سر تر پايه دي پوخ او ډامبر وي پكښې سته، او دا قدرت والا په پاكستان حتى چي په لندن او امريكا او نورو دولتو كي ښې ښې كوټې سته او په بانكو كي يې په لكو بلكه په كرورو مبلغ جمع كړى لري، او په ټوله نړۍ كي افغانسان تر دا اوسه يو پس مانده حكومت او دولت دي، عجيبه خبر لا داده كه خارجي دولت او يا خيريه مؤسسه كه څه هم كافران وي د افغانسان سره مرسته او كهمك وكړي يا د سړكانو د

جوړولو د پاره او يا د ښونځيو د ودانولو د پاره او د کنډيانو او يتيمانو د ښونې روزنې د پاره الى غير ذالك ظالمه طبقه د حکمرانانو د افغانستان هغه وخپلو جېبو ته واچوي،

صاحب کشاف علامه زمخشري وايي.

قضات زماننا صاروا لصوصا
عموما في القضايا لا خصوصا

فخافوا منه والوصا فحوتا
للصوامن خواتمنا خصوصا

**پوښتنه**:- چې صاحب جوهره وايي چې څه وخت چې مصنف رحمة الله عليه فارغه سو د هغه عقوباتو څخه چې متعلق په ساتنه پوري د نفسو په تعلق وو، اوس بيا هغه عقوبات بيانوي چې په ساتنه سره د اموالو مربوط دي و لکن چونکه نفس اصل وو او مال تبع وو نو ځکه دغه کتاب تر هغه نورو عقوباتو وروسته کړی.

**فائده**:- سرقه په لغت کي اخيستل د شي دي په پټه سره بېله اجازې د صاحب، که مال او که غير مال وي، او په شرعه شريفه کي اخذ د مال دي چي نصاب ته رسېږي چي هغه مال هم محفوظ وي، يعنې په لاره کي روپۍ پرتې وې چا واخيستلې هغه سرقه نه بولي، او دا سي مال هم نه وي چي ژر خرابېږي بېله تاويله لکه چي پلار د زوي مال په پټه واخلي په تاويل د انت ومالك لى ابيك، کذا في العنايه مع زياده" اوهر چي قطع الطريق دي هغه داده چي يو څو وسله وال کسان يو دښت يا غر ونسي په لويه لار کي يعني په داسي ځای کي ناست وي چي هلته د چا مدد وفرياد کونکي ته نه رسېږي، او په اعلانيه د خلکو

مالونه لوټوي، او كه د مسافرو څخه څوك زور ورسره كوي هغه وژني هم، نو دا قطاع الطريق څو قسمه دي بعض پر خلكواو مسافرو ګولۍ وچلوي لكن مسافر د خپلي په لاس درلودلي وسلې څندي تېر سي او نه څوك پكښي مړ سي او نه يې مال لوټ سي، او پعض وخت دا غله پر خلكو ګولۍ وچلوي بعض مسافر شهيدان كړي لكن د مال په وړولو كي كاميابه نسي، او بعض وخت دغه غله مال د مسافرو لوټ كړي لكن څوك د مسافرو څخه مړه نه كړي، اوبعض وخت دغه قطاع الطريق هم بعض مسافران شهيدان كړي او هم يې مالونه لوټ كړي، چي انشاء الله ددغو احكام به په كتاب كي راسي.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿اذا سرق البالغ العاقل﴾ يعني چي غلا وكړي په يوه پلا بالغ عاقل، دا قيد ددې دپاره دي چي قطع اليد خو جزاء د جنايت ده او جنايت په كوچني او لېوني كي نسته، لان العقاب مرفوع عنهما.

﴿عشرة دراهم او ما قيمته عشرة دراهم مضروبة كانت او غير مضروبة﴾ يعني غلا كي لس درهمه او يا بل شي چي قيمت يې لس درهمه وي كه سكه پر باندي وي او كه نه وي.

**پښوه بنه**:- چي دا تقدير زموږ مذهب دي، او امام شافعي رحمة الله عليه يې تقدير په څلورمه د دينار كوي نو هرڅو درهمه چي كېده، او امام مالك رحمة الله عليه يې تقدير په درې درهمه سره كوي، اصل ددې اختلاف دادي چي په احاديثو مباركه وو كي راغلي چي قطع اليد د سارق په زمانه كي د عليه الصلوة والسلام په هغه كي كېده چي قيمت به يې د سپر د قيمت

سره برابر وو، او هغه کم قیمت د سپر درې درهمه وو، او عمل په اقل سره اولی دي لانه المتیقن او دا مذهب د امام مالك رحمه الله دي او امام شافعي رحمه الله وایي چي دینار په زمانه کي د علیه الصلوة والسلام دولس (۱۲) درهمه وو او درې خو د (۱۲) ربعه ده، موږ وایو چي عمل په اکثر سره په باب کي د حدود افضل دي تاچي حتی الممکن دفعه د حد وسي ولي چي په اقل کي خو کم از کم شبهه د عدم جنایت سته کما لایخفی والحدود تندرء بالشبهات او اعلی قیمت د سپر په عصر نبوي ﷺ کي لس درهمه وو، حاصل مافی الهدایه مع الزیاده.

**مسئله**:- اعتبار قیمت لره د غلا کړي شي د وخته څخه د غلا بیا تر وخته تر قطع الید نو که په دغه منځ کي قیمت د مسروق مال کم سو لاس دې نه پرې کوي په نېز د شیخینو، او امام محمد رحمه الله وایي چي اعتبار قیمت لره د شي دي په وخت کي د غلا په منځ کي کم والی د قیمت مانع د قطع الید نه دي.

**فائده**:- مصنف رحمه الله دراهم عام کړه که مضروبه وي او که غیر مضروبه، دا روایت دي د حسن بن زیاد رحمه الله د امام اعظم رحمه الله څخه چي قیاسه وي یې پر نصاب د زکوات چي مضروبه او غیر مضروبه پکښي برابر دي، لکن ظاهر روایت د امام رحمه الله څخه دادي چي اعتبار مضروبه وو لره دي، وبه قال ابو یو سف ومحمد وهو الاصح جوهره.

**تفریع**:- که یو سړي لس درهمه مقدار غیر مضروبه غلا کړه چي قیمت یې تر لس دراهمو مضروبه وو کم وو لاس د غله نه پرې کېږي ویؤید مذهبها ان الدارهم یطلق فی العرف وقت البیع والشراء علی الدراهم المضروبه.

قال ﴿من حرز لاشبهة فيه وجب عليه القطع والعبد والحر فيه سواء﴾ او دا غلا هم د يوه ساتلي مال وه.

**ښوونه**:- چي حرز مصدر دي په معنا د منع دلته مراد ځندي هغه محفوظ ځای دي يعني چي د چا لاس ومال ته په اساني نه رسېږي
مجمع الانهر.

**فائده**:- حرز په معنای مذكوره سره دوقسمه دي، يو دادي چي هغه ځای د حفظ الاموال د پاره جوړوي نو كه سرای وي او كه دوكان وي او كه خيمه وي او كه صندوق وي وقد مر فايدة هذا القيد، او يا ځای د حرز صاحب المال وي لكه د سړي په جيب كي چي روپۍ وي او يا يې تر سر لاندي وي، په حديث شريف كي راغلي دي چي د صفوان ﷺ پټو چي تر سر يې لاندي كړي وو چا ځندي غلا كړي عليه الصلوة والسلام يې لاس ځندي پرې كړي، نو كه صاحب المال بېده وي لكه صفوان ﷺ او كه وېښ وي لكه كسه بر چي د چا د جيب څخه روپۍ وكاږي، او د شبهې د قيد فائده د مخه تېره سوه فتذكر، دليل د قطع اليد دا آيت مبارك دي، السارق والسارقة فاقطعوا ايديهما جزاء بما كسبا نكالا من الله.

**فائده**:- لس درهمه اوه مثقاله وزن لري، دغه لس درهمه كه د يوه سړي وي او كه د ډېرو لكن په يوه ځای كي پراته وي.

**فائده**:- په جزاء او عقبت كي د غلا حر او عبد سره برابر دي ولي په آيت مذكوره كي السارق والسارقة مطلق راغلي دي، او بل داچي قطع اليد خو نيمی كېدی نه قبلوي لكه حد زنا وغيره تاچي پر مريي باندي نيم عقوبت وای.

قال ﴿ويجب القطع باقراره مرة واحدة﴾ او قطع د لاس د سارق ثابتیږي په اقرار سره دده يو وار.

پوهه نښه:- چي په اقرار کي دده په رضا دده اقرار کول مشروط دي اوکه يې په زوره او په وهلو اقرار په وکړي لکه په عصر حاضر کي چې حکومت و متهم ته د غلا وهل تکول ورکوي چي مجبورا هغه اقرار وکړي دا اقرار وکړي دا اقرار باطل دي يعني قطع اليد نه په لازميږي، مجمع الانهر زياده.

پوهه نښه:- چي دا قول د امام اعظم او امام محمد دي رحمهما الله تعالى دي او امام ابو يوسف رحمه الله په اول کي اقرار دوه واره مشروط باله لکن وروسته يې رجوع وقول ته د طرفينو وکړه، دليل د يو وار اقرار د کفايت دادي چي اموال ټوله په يوه اقرار سره ثابتیږي، او بل دا چي اشتراط د تعدد الاقرار په حدود کي يوازي خاصه د زنا ده بالنص کما مر فى باب الزنا.

قال ﴿او بشهادة شاهدين﴾ او يا قطع اليد ثابتیږي په شهادت د دوو شاهدانو لکه په حقوق ماليه يو کي چي د دوو کسانو شاهدي کافي ده، هدايه.

قال ﴿واذا اشترک جماعة فى سرقة فاصاب کل واحد منهم عشرة دراهم قطع وان اصاب اقل من ذالک لم يقطع﴾ او که شريکان سوه يوه ډله د غلو په يوه غلا کي نو روپۍ چې سره وويشلې هر يوه ته ددوي لس درهمه ورسېده يعني يا بالاتر لس درهمه نو لاسونه دي د ټولو ورپرې سي، ولې چي هر يو ددوي سارق مستقل دي د

نصاب د قطع اليد ، او كه يې چېرې تقسيم وكړي وهريوه ته كم تر لس درهمه ورسېده د يوه لاس به هم نه قطع كېږي ولي چې نصاب د قطع اليد په يوه كي هم نسته، او امام مالك رحمه الله وايي كه د ټوله غلا كړي مال مجموع ونصاب ته د سرقې چې لس درهمه دي رسېده د ټولو لاسونه به پرې كېږي، زموږ دليل هغه دي چې تېر سو يعني هر يو دوي سارق مستقل دي او نصاب د يوه تر نصاب د قطع اليد كم دي، دی رحمه الله يې قياسه وي دا مسئله پر هغه مسئله د قصاص يعني چې يو جماعت په هيئت اجتماعي يو سړی مړ كړي ټوله پر قصاصيږي.

والجواب عنه:- چې قصاص خو په ختلو سره د روح د وژل سوي سړي مربوط دي هغه روح خو په يوه پلا خېژي نو هر يولكه فاعل د وژلو دي، كذا ما في الهامش القدوری، مع زيادة من هذا العاصی.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا يقطع فی مايوجد تافها فی دار الاسلام، كالخشب والحشيش والقصب والسمك والصيد﴾ او لاس نه پرې كېږي په هغه شي سره چې څوك يې غلاكړي چې هغه شی خوار او بې اعتباره وي په نېز د خلكو او مباح وي په دار اسلام كي. قيد به لان الموال الكفار كلها مباحة في دار الحرب، بنايه، مثلا لكه وچ بوټي او يا وابنه، او يا نل، او يا ماهي، او يا ښكار كړي شی، په حديث كي چې روايت يې عائشه رضي الله عنها كړي دي داسي راغلي دي چې لاسونه د خلكو نه پرې كېده په زمانه كي د رسول الله ﷺ په تافه يعني حقير شي كي، ولي چې دا شی چونكه مرغوب فيه د خلكو نه دي نو په اخيستو كي د ورته شي حاجت وزاجر ته نسته، ځكه په مادون النصاب كي زاجر د قطع اليد نسته، او بل دا چې ددې شيانو حرز ناقص دي

ځکه بعض وخت دغه شیان په لویو لارو کي پراته وي او د خلکو په دروازو کي مندل کېږي كما يدل على التجارب، او داغه رنګه ماهي چي چا نیولی وي او بل یو یې څندي یو سي، او یا ښکار چي چا کړی وي او بل یې څندي یوسي ولي چي ددې شیانو مضائقه عموما څوك نه کوي او بل حرز یې هم ناقص دی، فى الجملة فيورث الشبهة فلا يناسب عقوبة السرقة.

فائده:- مراد د لرګي څخه ماسوا د لرګي د ابنوس او سباح دي ولي چي دا دوه ډېر قیمتي لرګي دي كما لا يخفى.

فائده:- که لرګي نجار تراش کړي وه او یا په مثل د چار تراش د لرګو وو لکه چي د افغانسان څخه پاکستان ته هر وخت راوړه کېږي په هغو کي قطع اليد سته، اما الاوّل په دې سبب چي صنعت د نجار ده ته قیمت پیدا کړي، واما الثانى فلوجود الصنعة فيه وكثرة القيمة.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ولا فيما يسرع اليه الفساد كالفواكه الرطبة واللبن واللحم والبطيخ والفاكهة على الشجر والزرع الذى لم يحصد﴾ او داغه رنګه قطع نسته د هغو شیانو په غلا کي چي هغه ژر فاسد ېږي یعني د فائدې څخه زر وزي او دوام نه لري لکه لندې مېوې، لکه مالتې نارنج زردکي وغیره، او یا لکه شیدې او غوښي او خټه کی او هنداوانې، او یا هغه فاکهه چي پر درخته وي لکه انار، الو بخارا، شفتالو، شلیل وغیره چي په درختي پوري وي، او یا کښت چي لَو سوی نه وي لکه زموږ د پښتنو په اصطلاح خلك د لندو غنمو وږي شکوي او پر اور یې نیني کوي.

**فائده**:- دا مذکور فی المتن مذهب دی د امام اعظم رحمه الله او د امام محمد رحمه الله، او په نيز د امام ابو يوسف رحمه الله او امام شافعي رحمه الله وايي چي په دې شيانو کي قطع اليد سته چي قيمت ددغو شيانو و نصاب ته د سرقې ورسيږي يعني لس درهمه، والدلائل المذهبين فی الشروح.

قال ﴿ولا قطع فی الاشربة المطربة ولا فی الطنبور ولا فی سرقة المصحف وان کان عليه حلية ولا فی الصليب من الذهب والفضة ولا الشطرنج والا النرد﴾ او قطع اليد نسته د هغو مشروباتو په غلا کي چي سکر راوستونکي وي، او داغه رنګه قطع نسته په غلا کولو کي د تنبور وهکذا رباب سارنګي، د سروز د نل وغير ذالك من آلات اللهو، او نه قطع اليد سته په غلا کولو کي د قرآن شريف که څه هم زېور داره وي يعني په سرو زرو نوشته سوی وي، او نه په غلا کولو د صليب د نصاراوو چي په دې شکل دي ✝ او دوي يې لوړ احترام کوي که څه هم د سرو يا د سپينو زرو وي، او نه په غلا کي د شطرنج او کتار يعني چي پر يو تخته يې ليکلی وي او يو سړی هغه تخته غلا کړي، نو په دې ټولو شيانو کي قطع اليد نسته لان الاخذ لعله انما اخذت تلك الکتب للحرق والخرق فوجد الشبهة وهی دارئة للحد.

**درويش وايي**:- چي هم پردي قياسيږي کتابونه د فسق د غزلو او د ښځو د جمال او عشق بيانولو کتابونه لکه سبع معلقه وغيره، او دخالصو درواغو کتابونه لکه د مير همزه پښتو کتاب او نور.

**درویش وایي**:- چي ددغو مسائلو دلائل په حاشیه کي د طحطاوي رحمة الله علیه پر درمختار، او په هدایه او په بنایه کي او په مجمع الانهر کي ذکر سوي دي حاصل یې دادي، اما الشربة المسکره هغه خو حرام دي نو سارق یې دا بهانه کولای سي چي ما د تویه ولو د پاره غلا کړه او د بعض مشروباتو په مباح والي کي چي اختلاف دي په هغو کي هم قطع نسته ولي په اباحت کي اختلاف عین اختلاف په مالیت د هغه شي ولي چي حرام خو مال نه دي او دا د مخه هم تېره سوه شبهه د راء د حد ده او مختلف مشروبات یعني منصف یعني د انګورو اوبه ویشوي چي نیمی پاته سي نو بیا یې چښي او د ماء الشعیر په نامه مشروب چي کثیر یې سکر دي او یا د ابو د جواریو په نامه وغیرهما ولي چي هر شی چي کثیر یې مسکر وي قلیل یې هم حرام دي په نیز د امام شافعي رحمة الله علیه لکه خمر یعني اصلي شراب او د امام شافعي رحمة الله علیه سره موفقه کړې امام محمد رحمة الله علیه په حرمت کي د قلیل او کثیر ددغو شیانو، قال ط وعلیه الفتوی یقول الفقیر وهذا الدفع الفتنة عن الامة المرحومة فان عوام الزمان الحاضر یختالون فی الشرب الکثیر المسکر لوجوزلهم القلیل.

**اولنی صوفي وایي**:- سرکه د دوښا او عسلو حلاله ده ولي چي ددې کثیر هم مسکر نه دي نو که سارق دغه شیان غلا کړه او قیمت یې ونصاب ته رسېدي نو قطعه پر واجبه ده، واما الطنبور ونحوه مما ذکرنا فلانها من آلات اللهو فالسارق یقول انی سرقتها للکسر فلا ملام علیه والحد انما شرع للزجر عن المحترم، والاحترام لهذه الاشیاء، که څه هم قیمت د طنبور وغیره تر نصاب بالا هم وي، واما السرقة المصحف نو عدم قطع

زموږ مذهب دي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي د مصحف پر غلا قطع سته ولي چي مصحف مال متقوم دي او بيعه يې روا ده، وروى عن ابى يوسف رحمه الله مثله، او بعض فقهاء وايي چي كه د مصحف حليه يوازي ونصاب ته د سرقې رسيده قطع د يد پر واجبه ده ولي چي حليه خو د مصحف جزء نه ده نو جلا معتبرېږي، دليل د ظاهر روايت دادي چي د قرآن شريف غلا كونكي به شايد دا بهانه وكي چي ما قرآن شريف د پاره د وظيفي او قراءت وړي دي، او پاته حليه سوه هغه خو تبع د مصحف شريف ده او مقصود بالذات نه ده، ولااعتبار لما بالتبع لكه يو سړى چي شراب غلا كړي او هغه په داسي لوښي كي وي چي قيمت د لوښي يې تر نصب بالاوي نو قطع اليد نسته پكښي ولي اصلي مقصود خو شراب دي او په شرابو كي خو قطع نسته كما مر من انه ليس بمال، ه، در.

او په صليب كي كه څه هم د سرو زرو وي هم قطعه نسته او داغه رنګه په بت كي د سرو يا د سپينو زرو، او داغه رنګه قطع نسته په شطرنج او نرد وغيره كي ولي چي متبادر د حال څخه د اخيستونكي ددغو شيانو ماتول د هغو دي.

**فائده**:- كه چا داسي دينار يا درهم غلا كي چي پر هغه باندي د انسان بت وو د هغه لاس پرې كيږي چي نصاب ته ورسېږي ولي چي د درهم اودينار اخيسته د ماتولو د پاره نه دي بلكه دتمول د پاره دي فلاوجود فيها لشبهة الكسر حتى يندرء بها الحد، مجمع.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا قطع على سارق الصبي الحر وان كان على حلي﴾ او قطع د يد نسته پر غلا كونكي د كوچني چي حر وي كه څه هم پر هغه ګڼه وي يعني د سرو يا د سپينو زرو، ولي چي حر خو مال نه دي او قطع اليد خو په مال پوري تړلېده، او امام ابو يوسف رحمه الله وايي كه حليه د صبي نصاب ته د قطع اليد رسېده لاس دې پر پرې كړه سي، او ائمه ثلاثه ودغه مذهب ته مائل دي، وجه د ظاهر الروايت داده چي صبي خو اصلا مال نه دي او زېور تابع دده دي ولا اعتبار لتوابع.

**پوهه نښه**:- چي دا اختلاف په هغه صبي كي دي چي مميز نه وي يعني په ښه او بد نه پوهېږي او كه مميز وو بيا قطع په اتفاق نسته ولي دا غلا نه ده بلكه دا چم دي د ېېونكي د كوچني سره، در مع زياده.

قال ﴿ولا سارق العبد الكبير ويقطع سارق العبد الصغير﴾ او نه پر غله د لوي مريي قطع سته ولي چي دا غصب دوي بولي غلا نه ده، او لاس پرې كېږي د سارق د كوچني مريي يعني كه څه هم د هغه حلې نه وي ولي چي مريي خو مال دي لكن دا هلته چي دا كوچني مريي جزعه او استغاثه نسواى كولاى، ولي چي داسي كوچنى لكه بهيمه يعني خر او غوا ده مثلا او د هغو په غلا كي خو قطع سته اذا بلغ قيمتها نصابا،او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي په ورته كوچني مريي په غلا كي قطع نسته لانه آدمی من وجه ومال من وجه.

قال ﴿ولا قطع فی الدفاتر كلها﴾ او قطه نسته په غلا كي د ټولو كتابو، هدايه واى كه د تفسير كتابونه وي او كه د حديثو كتابونه وي،

اوکه د فقهي کتابو نه وي ولي چي مقصود دده په غلا کولو کي د
کتابو هغه شی دي چي په دې کتابو کي موجود وي من التفاسير
والآديث ومسائل الفقه وكلها ليس بمال.

**دروېش وايي:-** چي د منطقو، حکمتو، او رياضي وغيره کتابو په
غلا کي په طريق اولی قطع نسته، تامل.

قال ﴿الافى دفاتر الحساب﴾ مګر په کتابو کي د حسابو د
حکومت چي په هغو کي قطعه سته ولي چي حکومتي حسابونه خو د
سارق په درد نه خوري نو مقصود د غله صرف کاغزونه دي نو که د
هغو قيمت نصاب ته رسېدي نو په هغه کي قطع سته.

﴿ولا يقطع سارق كلب ولا فهد﴾ او لاس دي نه پرې کېږي د سپي
د غله او نه د يږ د غله که څه هم د ښکار سپی وي لکه تازي چي تر
نصاب بالا قيمت لري او د کور د ساتلو خوروي سپي، او يا د کښت د
حفاظت سپی او يا د پسو د حفاظت سپی چي دا سپي د هم تر نصاب
بالا قيمتو نه لري، صاحب هدايه وايي چي عدم قطع په غلا کي د هر
قسم سپو داده چي د جنس څخه د سپو داسي سپي سته چي د چا
رغبت نه ورته کېږي،او يا مباح الاصل وي لکه د بازار لوی لکی سپی
چي نه د جنګ دي او نه د ننګ، او يا چني سپی، فلا يجب فی جنسه
القطع بهذه العلة، او بل دليل يې دادي چي په سپو کي د علماء رحمهم الله
اختلاف سته بعض يي نجس العين بولي لکه خنزير نو مال متقوم نه
دي، او بعض فقهاء رحمهم الله يې مال متقوم بولي په هر صورت دې اختلاف
شبهه پيدا کړه په ماليت کي د سپو نو خود لاس د سارق يې نه پرې

کېږي لان الحدود یندرء بالشبهات، وعلی هذا قس الفهد، آه مع زیاده کثیره.

قال ﴿ولا دف ولا طبل ولا مزمار﴾ او داغه رنګه قطع نسته په کولو کي د دریې، او نه په غلا کي د ډول او نه د نل د سروز، د یارانو په نیز دا شیانو لره قیمت نسته، او امام اعظم ﷫ وایي چي شاید دا غل به دا بهانه وکړي چي دغه شیان ما د ماتېدو د پاره یوورړه. کذا فی الهدایه.

**تشریح**:- چي د ډول څخه مراد د لهو او ساتېري ډول دي لکه بعض خلګ چي یې په ودو کي وهي، او په ډول کي د غازیانو اختلاف د مشائخو دي لکن صدر شهید وایي چي په هغه ډول کي هم قطع نسته.

قال ﴿و؛یقطع فی الساج والابنوس والقنا والصندل﴾ او پرې کېږي لاس د غله د ساج د لرګي په غلا کي، او د ابنوس په غلا کي ابنوس هم یو قیمتي لرګي دي چي په ښېا ښېا کوټیو وغیره کي کارېږي، او قنا په زبر د قاف جمع ده د قنات دا هغه قیمتي لرګي دي چي د هغه څخه د جنګ د نېزو لاستي جوړوي، او صندل د یو خوشبویه لرګي نوم دي چي ژړ رنګ یې هم سته او سور رنګ یې سته او ښه لوړ قیمت لري دلیل د قطع الید په غلا کي ددې شیانو دادي چي دا لرګي ډېر عزتمند دي په نېز د خلکو او محرز هم دي او ددوی د جنسه مباح بېخي نسته؛ هدایه، نهایه، منتخب، درویش.

پوهه:- چې ساج د یوې درختې نوم دي چې ډېره ببحده لويه درحته ده چې د هغې لرګي په ښو ښو بناؤ کي او په ښو ښو دروازو او مېزو کي وغیره کي استمالېږي او ډېر قیمت لري، چې دغه درختې ډېري د هند په ځنګلو کي پیدا کېږي، او د افغانسان د جلال آباد په شا وخوا کي هم سته چې چار تراش یې بولي.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿واذا اتخذ من الخشب اواني او ابواب قطع فيها﴾ او که جوړ کړه سوه د لرګو څخه لوښي یعني د خورك یا د چښك مثلا په پخوا زمانه کي به د لرګي کاسې وې او وصراحي ته ورته د آبنوشي د لرګي لوښي به وه وهکذا، او یا د لرګي څخه دروازې مثلا یا مېزونه یا الماری وغیر ذالك چې نجار جوړکړي وه لکه په اوسنی زمانه کي هم دغه شیان د تختو څخه جوړوي، لاس ددغو شیانو د غله دي ورقطعه سي یعني چې نصاب ته د سرقې ورسېږي، دلیل یې دادي چې صنعت د نجاري ددغو شیانو غالب دي پر اصل چې لرګی دي نو په دې سبب دغه مذکوره شیان او امثال د هغو د نفیسه اموالو څخه ګڼړل کېږي او په حرز کي هم وي، او چې سپك هم وي چې پر یوه سړي یې ورنګ هم ونه ذرنېدي.

مسئله:- که یو ددغو شیانو څخه په دېواله پوري د سرای ځړېدي بیا قطعه پکښې نسته لعدم الحرز، والاصل الكلي هر شی چې مباح الاصل په دار اسلام کي نه پیدا کېږي او د اعزارو د نفیسه اموالو څخه ګڼړل کېدي پر غله یې قطعه لازمه ده، مجمع الانهر، در، درویش.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ولا قطع على خائن او خائنة ولا منتهب ولا مختلس ولا نباش﴾ او قطع اليد نسته پر خائن او خائني ښځي يعني چي په چم او حيله د چا مال يوسي ولي چي دا غلا نه ده، او نه قطعه سته چي په تړاك او يا په چم د چا شى يو سي ولي تړاك او يا حمله خو علانية كېږي غلا خو په پټه سره وي نو دا غلا نه ده او په صحيح حديث كي هم راغلي دي، لاقطع فى مختلس ولا منتهبا ولا خائن، كذا فى الهدايه.

پوهنه :- چي انتهاب دادي چي يو سړى د بل سړي مال په زوره علانيه څندي يوسي، او اختلاس دادي چي په ډېر تلوار د چا پر مال حمله وكړي او څندي يو يې سي، عنايه. او نه پر نباش قطعه سته، نباش هغه سړى بولي چي د تازه مړي كفن پسله شنلو د قبر څندي يوسي.

پوهنه :- چي دا مذهب د طرفينو دي او امام ابو يوسف رحمة الله عليه وايي چي پر نباش قطعه سته دى وايي چي كفن مال متقوم دي او محرز دى په قبر سره نو لكه غل چي دخوني څخه د يو چا مال يوسي، د ظاهر الروايت دليل دادي چي د كفن په ملكيت كي شبهه سته چي د چا ملك دي ولي چي مړي خو حقيقتاً د هيڅ شي مالك نه دي او د وارث ملك هم نه دي لتقدم حاجت الميت، جوهره.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ولا يقطع السارق من بيت المال﴾ او لاس دي نه پرې كېږي دغله د بيت المال د روپو يعني د حكومت د روپو څخه، ولي چي بيت المال حق د عامه مسلمانانو دي او سارق هم په

عامه وو کي داخل دي نو ده لره په بيت المال کي هم حق سته نو قطع اليد په شبهه ددې چي د غله غلا نه وه مقصود بلکه خپل حق اخيسته يې مقصود وه.

قال ﴿ولامن مال للسارق فيه شركة﴾ او نه په سرقه کي د هغه مال چي د سارق په هغه کي شرکت وي مثلا دوه کسه په تجارت کي سره شريکان وه دا يوه شريك د تجري څخه ډېري روپۍ غلا کړې لاس يې نه پرې کېږي لشبهة الشراکة.

قال ﴿ومن سرق من ابويه او ولده اوذى رحم محرم منه لم يقطع﴾ او که چا غلا وکړه د مال څخه د مور يا د پلار او يا د مال څخه د زوي يا لور يا د ذی رحم محرم څخه لکه وروڼه خوندي لاس يې نه پرې کېږي.

**فائده**:- چي دا مسئله اجماعي ده ولي د دغو کسانو په منځ کي فراخي سته په نفع اخيستلو د يوه په مال د هغه بل، او بل حرز يې هم کامل نه دي لدخول احدهم دار الآخر بلا اجازة.

﴿وکذالک اذا سرق احد الزوجين من الآخر او العبد من سيده او من امرئة سيده او من زوج سيدته او المولى من مکاتبه وکذالک السارق من المغنم﴾ او داغه رنګه قطع اليد نسته چي غلا وکړي يو د مېړه او مايني څخه د هغه بل د مال څخه يعني که څه هم دا مال مسروق په حرز خاص د هغه بل وي، او داغه رنګه قطع اليد نسته چي مريي د بادار مال غلا کړه او يا د بادار د مايني څخه مال غلا کړي، او يا مريي د خپل باداري د مېړه د مال څخه

غلا وکړي، او یا بادار د مال څخه د مکاتب غلا وکړي، او داغه رنګه قطع الید نسته چي یو سړي د مال څخه د غنیمت غلا وکړي، ودلیل الکل فراخي د تصرف مالي په منځ کي ددغو کسانو ولنقصان الحرز فی بعض المذکورین لکه غنیمت، جوهره و در.

**پوه سه**:- چي دغه غلاوي خو ټوله حرامي دي لکن خبره په سقوط کي د حد زاجر ده چي قطع الید ده، درویش.

**فائده**:- پوه سه چي چونکه په معنا کي د سرقې په پټه وړنګ د مال معتبر دي نو په سرقه کي خواه ماخواه حرز معتبر دي ولي چي حرز نه وي نو په پټه وړنګه یې څه ضرورت دي نو ددې سببه مصنف رحمه الله په تفصیل د حرز کي داسي وایي.

قال ﴿والحرز علی ضربین حرز لمعنی فیه﴾ حرز پر دوه قسمه دي یو حرز په سبب د معنا په حرز کي.

**پوه سه**:- چي حرز دلته په معنا د محرز یعني ځای د خوندي کېدو دي.

﴿کالدور والبیوت﴾ لکه سرایونه او خوني، او داغه رنګه دي صندوق او دکان او ګاش د پسو او بزو وغیره.

﴿وحرزه بالحافظ﴾ اوبل حرز او ساتنه د مال په حافظ لکه د سړي په جیب چي روپۍ وي او یا یې یو شی تر سر لاندي کړی وي وغیر ذالك، جوهره والا وایي چي سړی هلته حافظ د مال بولل کېږي چي مال ده ته نژدې وي یعني چي دی یېویني او که مال دومره لیرې ؤ چي ده نه لیدی نو دی حافظ نه دي.

قال ﴿فمن سرق مالا من حرز او غير حرز وصاحبه عنده يحفظه وجب عليه القطع﴾ نوكه چا غلا كي يو عين او مال كه د حرز څخه وي لكه د خونې يا سراى وغيره څخه او يا بېله حرزه څخه وي يعنې بالمعنى الاول او مالك د مال دلته و چي دا مال يې ساته يعنې په سبب د خوب د مالك يا غفلت د هغه واجب ده قطعه پر هغه غله فى الهدايه لانه سرق ما لاً محرزا باحد الحرزين يعنې حرز په سبب د حافظ.

پوښتنه:- چي چونكه پر عبارت د مصنف رحمة الله عليه دا سوال وارد دى چي دى څرنګه وايي من حرز او غير حرز او بيا وايي و صاحبه آه ولي چي صاحب المال دلته موجود دي نو خوحرز بالحافظ موجود دي نو غير حرز ويل څرنګه روا دي، نو له دې كبله درويش دا عبارت ووايه يعنې بالمعنى الاول تامل ليكون ذوقيًا لك والله اعلم.

قال ﴿ولا قطع على من سرق من حمام او من بيت أُذن للناس فى دخوله﴾ او قطع اليد نه سته پر هغه چا چي له حمام څخه شى غلا كړي ولې چي په حمام كې خو عادتًا اذن عام سته نو حمام حرز نه دى او يا شى غلا كړي لـه هغې خونې څخه چي خلكو ته اجازه د ورتګ و هغې خونې ته وركړل سوې وي. لكه مثلاً د واده په شپه خلكو ته دودې په دغه خونه كې وركوي او څوك ځي څوك راځي، ولې چي خونه په سبب د اذن صراحةً حرز نه ده.

مسئله:- د تجار د تجارتخانې څخه چي څوك د ورځې شى غلا كړي، نو د لاس قطع يې نه سته عليه السلام لوجود الاذن عادة فيها او كه يې د

شپې غلا کړي نو بيا يې قطع اليد سته، لعدم اذن الدخول فيها ليلاً لا صراحةً ولاعادةً فهی حرز فی الليل.

قال ﴿ومن سرق من المسجد متاعًا و صاحبه عنده قطعه﴾ او که چا غلا کړه د مسجد څخه متاع يا روپۍ او صاحب المتاع دلته و که بيده وي او که ويښ لاس دې پرې کړه سي.

**پوه سه**:- چې خودي مسجد شريف حرز نه دي ولي چې مسجد خو د عبادت لپاره جوړ سوی دي نه د حرز الاموال دپاره، نو مسجد په حق کي د اموالو لکه صحرا دا سي دي نو ددې سببه حرز بالمالك ضروري دي.

**تفريع**:- که يو چا د مسجد غالي يا ساعت وغيره د ورځي د خوا غلا کړه نو قطع اليد يې نسته لعدم الحرز نهاراً، او که يې د شپې چې د مسجد دروازه قلف وه چا شی غلا کړي بيا قطع اليد باندي سته لان المسجد بسبب القفل صار حرزاً، فتدبر ، وانما قلنا که بيده وي آه ولي چي په حديث شريف کي راغلي دي چي آنحضرت ﷺ حکم د قطع اليد وکړي پر هغه سارق چي د صفوان ﷺ پټو چي دده تر سر لاندي و او دی په مسجد کي بيده و ځندي غلا کړي.

قال ﴿ولا قطع علی الضيف اذا سرق من بيت من اضافه﴾ او قطع اليد نسته پر هغه ميلمانه چي شی غلا کړي د خوني د هغه چا چي دی يې ميلمه کړي دي ولي دغه خونه په سبب د اجازې د مالك د ميلمه په حق کي حرز نه ده لوجود الاذن نو دا غلا نه ده بلکه خيانت دي، هدايه مع زياده.

قال ﴿واذا نقب اللص البيت ودخل واخذ المال وناوله آخر خارج البيت فلا قطع عليهما﴾ او که سوري کړه غله خونه او تر غار ورننوتی او مال یې را واخیستی او بل سړی چي هغه دباندي ولاړ و وریې کړي نو پر یوه هم قطع الید نسته.

**تشریح وایي:-** چي دا مذهب دی د امام اعظم رحمه الله ولي چي اول سړي خو غلا نه ده کړې صرف اخراج المتاع یې وکړه او دباندي سړي هم غلا نه ده کړې بلکه صرف حرز یې صرف بې پرده کړی، او په نبز د یارانو د داخل لاس دي پرې کړه سي ولي داخل چي متاع راویستل او خارج واخیسته نو د خارج لاس قائم مقام دده د لاس دي ګویا دی تر غار راووتی اومتاع یې په لاس کي وه، او د امام ابو یوسف رحمه الله څخه روایت دي که چېري خارج لاس په غار ورننه یستی او داخل په لاس کي متاع ورکړه ددواړو لاس دي پرې کړه سي، او که داخل متاع خارج ته راوغور ځول او د خارج په لاس کې ورنه کړه نو پر یوه قطع الید نسته، كذا فى الجوهره.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان القاه فى الطريق ثم خرج فاخذ قطع﴾ او که داخل سړي متاع کوڅې ته راوه غورځاوه او بیا پسي راووتی هغه یې یووړی لاس دي پرې کړه سي، او امام زفر رحمه الله وایي چي قطعه په دې صورت کي نسته ولي چي نفس راغورځول وخارج ته خو سبب د قطع الید نه ده نو لکه غل چي مال کوڅې ته راوغورځوي او یو یې نسي، موږ وایو چي متاع کوڅې ته راغورځول خو د غلو معتاد حیله ده ولي چي غل خو د متاع سره د غاره څخه نه سي راوتلای، نو د مال

غورځول او بيا ورل يو فعل دي، بخلاف ما اذا خرج المتاع الى الطريق وثم ياخذ كما قال زفر رحمة الله عليه لانه حينئذ مضيع المال لا سارقه، او امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي د داخل لاس به په هر صورت کي پرې کړه سي،
مجمع الانهر مع زياده.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿وكذالك اذا حمله على حمار وساقه فاخرجه﴾ او داغه رنګه لاس د غله پرې کيږي که غل د چا کور ته ورداخل سو او سامان يې پر خره رابار کړي او خر يې شړی او سامان يې کورته راوړي، لان فعل الحمار منسوب اليه ګويا ده سامان د کوره راپه شا کي او رايې وړي، هدايه، مع زياده، در.

قال ﴿واذا دخل الحرز جماعة فتولى بعضهم الاخذ قطعوا جميعا﴾ او که داخل سو وحرز ته يعني کور ته د يو چا يو جماعت د غلو لکن بعضو غلو د کور څخه متاع راواخستل نو د ټولو لاس دي ورپرې کړه سي ولي دوي ټوله چي سرای ته ورغله په غلا کي سره شريکان دي، او که جماعت د غلو سره ملګري خو وو لکن کور ته يو نفر ورداخل سو او سامان يې د کور څخه راويستی او هغه نور په دروازه کي ورته ولاړ وه نو قطع اليد يوازي پر داخل سته او هغه نورو ته دي تعزير ورکړه سي.

قال ﴿وان ادخل يده فى صندوق الصيرفى او فى كم غيره واخذ المال قطع﴾ او که يوسړي په صندق لاس چخ کي د صراف يا د بل چا په لستوڼي يعني د هغه په لستوڼي کي روپۍ وي كما هو المعتاد فى الزمان الاسبق، او مال يې راواخيستي لاس دې ورپرې کړه

سي ولي چي د حرز څخه د صندق يا د لستوڼي مال راويستی، او که يوه غله په صندوق او يا په جېب د سړي لاس چخلی و او روپۍ يې په لاس کي نيولې وې لکن مالك د روپو دده لاس ټينګ کړي قطع اليد نسته باندي ولي چيسرقه خو په رايستلو سره د مال پوره کېږي دلته خو هغسي نه سوه.

قال ﴿ومن نقب البيت وادخل يده فيه واخذ شيئا لم يقطع﴾ او که يوه غله خونه سوري کړه او د دباندي د خوا يې لاس په خونه کي داخل کي او يو شی يې د خوني څخه راويستی او يو يې وړی لاس دي نه پرې کوي ولي چي دا بې پردګي د حرز نه ده کړې، وهو الصحيح، مجمع.

قال ﴿وقطع يمين السارق من الزند وتحسم﴾ او پرې کېږي به رسته لاس د سارق د اول بند څخه او داغ دې کړی په ايشولو تېلو او يا په توده وسپنه تاچي تپ يې سره ټول سي او وينه يې بنده سي.

**پوښتنه**:- چي په قرآن مجيد کي خو داسي راغلي دي،السارق والسارقة فاقطعوا ايديهما" او يد خو عام دي چيه او رسته دواړو ته شامل دي لکن تخصيص د يمين په روايت د قرائت د ابن مسعود ﷺ دي چي په هغه کي فاقطعوا ايمانهما راغلي دي چي دا قرائت هم مشهور قرائت دي.

**فائده**:- قياس خوداي چي د سارق لاس دي د وږې څخه وريږي سي لان اسم اليد يتناول الی منکب لکن دا قياس موږ پرې بنوی په دي دليل چي عليه الصلوة والسلام د غله د لاس د پرې کېدو حکم د زند

ځخه ورکړي دي نو دا حدیث بیان د مراد دادی د ایدیهما چي په قرآن مجید کي راغلي دي، ومع هٰذا یارانو په قیاس سره قول کړي دي او هغه خبره چي بعض علماء وایي چي د غله لاس دي د ګوتو په اندازه وریږ کړي، کفایه والا وایي چي دا قول خلاف النص دي.

قال المصنف رحمه الله ﴿فان سرق ثانیا قطعت رجله الیسرا وان سرق ثالثا لم یقطع وخلد فی السجن حتی یتوب﴾ او که غله غلا وکړه دوهم وار نو چپه پښه دي وریږ کړي.

پوښتنه:- رسته پښه ولي نه وریږ کوي؟

ځواب:- داسړی بیا پر لکړه هم نسي تلای کما یدل علیه التجربه.

پوښتنه:- چپه لاس يې ولي نه وریږ کوي؟

ځواب:- تاچي جنس منفعت د لاسو فوت نسي یعنې خوراك او تینګول د شی، پرتګاښ تړل وغیره.

فائده:- د پښې پرې کېدل به يې د بجلکي ځخه کوي عند اهل العلم وفعل ذالك عمر رضي الله عنه، او روافض وایي چي نیمی د پښې د ګوتو د خوا دي ځندي پرې کړي کذا فی البنایه، او که يې غلا وکړه دریمه پلا نو دي هیڅ شی نه ځندي پرې کوي یعني نه لاس او نه پښه بلکه د حبس ابد د پاره دې په بندي خانه کي بندي کړي تر هغو چي توبه کاږي یعني یا په بندي خانه کي مري، لکن سره د حبس دې تعزیر د غلا هم ورکړي کذا فی الجوهره.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان کان السارق اشل الید الیسرٰی او اقطع او مقطوع الرجل الیمنٰی لم یقطه﴾ او که چېري د سارق

چېه لاس شل و يعني حرکت يې نه درلودي او يا چپه لاس يې پرې وپا
يوه سبب سره او يا يې پښه پرې وه نو هيڅ شی دي نه څندي پرې کوي
يعني نه راسته لاس په اوله غلا کي ولي چي چپه لاس يې شل دي او کړ
يي په اوله غلا کې رسته لاس څندي پرې کړي تفويت د جنس منفعت
لاس لاړمېږي، او د چپه شل لاس پرې کېده يو خو زجر نه په راځي او بل
په قرآن مجيد کي په روايت د ابن مسعود ﷺ ايمانهما راغلي دي کما
مر او چي چپه لاس يې پرې وي هم داغه حکم دي او که يې رسته پښه
پرې وي نو په دوهم پلا په غلا کي چي د چپې پښې د پرې کېدو نو بيا
وو چپه پښه دي نه څندي پرې کوي لفوت الجنس منفعة الرجل وهو
المشی هذا حاصل ما فی الهدايه مع الزيادة کثيرة.

قال ﴿ولا يقطع السارق الا ان يحضر المسروق منه فيطالب
بالسرقة﴾ او قطعه د لاس او پښې نه کېږي مګر هغه وخت چي هغه
سړی چي دده څخه غلا سوې ده حاضر نه وي او هغه هم طلب د سرقې
کوي، دليل يې دادي چي په حدود کي دعوی شرط ده نو چي مسروق
منه نه وي نو خصومت او دعوه څوك کوي او بل دا چي ددې څخه نوې
شبهه پيدا کېږي هغه داچي مالك المال دي و سارق ته اباحت کړيوي او
يا دې مسروق منه دغه خپل مال وقف کړی وي پر ټولو مسلمانانو او
وسارق ته دې اجازه ددخول فی الحرز کړې وي نو مطالبې ته دده
ضرورت سته تاچي دا مذکوره شبهه د منځ څخه ولاړه سي، واما الزنا
فلا يشترط فيه المطالبة لان الفرج لا يتصور فيه الاباحة والوقف فليس
هنالك شبهة اصلا حتی يندرء بها حد الزنا فافهم کذا فی البنايه.

قال المصنف رحمه الله ﴿فان وهبها من السارق او باعها منه او نقصت قيمتها من النصاب لم يقطع﴾ او كه مالك د مال وبخښل سرقه يعني هغه مال مسروق وه سارق ته او يا سارق څخه ي رانيوي، او يا قيمت د مال مسروق په مرور د زماني تر نصاب د سرقې كم سو نو قطعه نسته پر سارق، او امام زفر او شافعي رحمه الله او داغه رنګه امام ابو يوسف رحمه الله په يوه روايت كي وايي چي په درې سره صورتو كي دې لاس ورپرې كړه سي، ودليل المذهبين فى مجمع الانهر، والشروح الآخر للقدوري.

قال ﴿ومن سرق عينا فقطع فيها وردها ثم عاد فسرقها وهى بحالها لم يقطع﴾ او كه يو چا غلا كي يو معين شى مثلاً خر بې غلا كړي او لاس يې پر پرې كړه سو او هغه عين سارق رد كړي ومالك ته د عين، بيا سارق ورغلي بيرته يې هغه عين غلا كړي نو كه هغه عين پر دمخه حال باقي و نو ددې پلا په غلا كي دې شى نه ځندي كوي.

ښوونه:- چي لفظ د عين موئنث سماعى دي نو ځكه يې ضمير د موئنث ورته راجع كړي، وقال زفر و الشافعى رحمه الله وفى روايت عن ابى يو سف رحمه الله ايضاً انه يقطع وهو القياس والدلائل فى الشروح.

قال ﴿فان تغيرت عن حالها مثل ان كانت غزلا فسرقه فقطع فيه ورده ثم نسج فعاد وسرقه قطع﴾ او كه تغير خوړلى و هغه عين چي سارق غلا كړى و د پخواني حال څخه يعني د هغه حال څخه چي ده اول وار غلا كړي و مثلاً، هغه عين په اوله غلا كي ورته وه

(وړی) نو ده غلا کړه او لاس یې پر پرې کړه سو، او غله هغه ورته بیرته مالك ته ورکړه او بیا وودل سول د هغه ورتو څخه مثلا کمبله بیا سارق ورغلي کمبله د هغو ورتو یې غلا کړه قطع دي وسي یعني چپه پښه دې ور پرې کړه سي ولي چي په دې صورت کي خو عین بدل سو چي ورته یې بلل او اوس یې کمبله بولي، او قیمت یې هم بدل سو نوګویا سارق سابق یو بل شی غلا کړي نو ځکه قطعه پر لازمه ده، هدایه دروېش.

قال ﴿واذا قطع السارق والعين قائمة في يده ردها وان كانت هالكة لم يضمن﴾ او چي قطعه وکړه سي یعني یا د لاس یا د پښې او عین یعني مال مسروق موجود وي په لاس کي د سارق نو مالك ته دې رد کړي ولي هغه شی اوس هم پر ملك د مالك باقي دي نو ځکه وسارق ته نفعه اخیسته پر هغه عین مسرق باندي په هیڅ وجهي روا نه ده مثلا خر یې غلا کړی و نو نه یې سپرتیا وسارق ته روا ده او نه بار پر وړل ورته روا دي، او که غله مثلا هغه خر پر بل چا خرڅ کړی و مالك به یې د مشتري څخه بیرته اخلي بلا خلاف لان السارق باع ملك غيره بغير اذنه وهذا علامة بقاء ملك المالك في العين، مجمع دروېش.

او که چېري هغه عین مسرق د سارق په لاس کي هلاك سوی و مثلا خر هلاك سوی و دده په لاس کي بلکه که سارق هلاك کړي و مثلا پسه یې غلا کړی و او حلال کړي یې و او غوښي یې خوړلي وې، او یا وړه وه یا انګور وه وغیره بیا یې ضمان پر سارق نسته ولي چي زموږ په نېز قطعه او ضمان نه سره یو ځای کېږي قال عليه الصلوة والسلام لا غرم على السارق بعد ما قطعت يمينه.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿واذا ادعى السارق ان العين المسروقة ملكه سقط القطع وان لم يقم بينة﴾ او كه دعوه وكړه غله چي دغه شى معين چي غلا كړه سوى دي يعني چي ما غلا كړى دي دا زما ملك و نو قطعه اليد دده څخه ساقطه ده كه څه هم پردې دعوې دى شاهدان نه كي تېر يعني پس لـه دې چي د سرقې شاهدان هم تېر سي ولي چي په دعوې كي شبهه پيدا سوه ولي چي امكان لري چي دا عين مسروق په د سارق و لكن دا بل سړي به په زوره قبضه پر لګولې وه نو د سارق زور نه په رسېدي نو يې په پټه يعني د غلا پر طرز خپل شى ځندي يو وړي.

پوښتنه:- چي دا شى د سارق واى نو شاهدان بې پر درلو داى؟

ځواب:- عدم د شاهدانو خو عدم لره د ملك نه دي مستلزم ولي ډېرشيان خلګ لري او څوك نه وي په خبر.

قال ﴿واذا خرج جماعة ممتنعين او واحد يقدر على الامتناع فقصدوا قطع الطريق﴾ او كه ووتل يعني د خپلوكورو څخه يعني غرويا دښتو او بېبانو ته يوه ډله چي ممتعنين وه يعني خپل ځانونه يې د حكومت څخه ساتلاى سوه د وسلې په زور، او يا يو سړى و چي د وسلې په زور يې ځان ساتلاى سواى د حكومت څخه.

پوښتنه:- چي قطاع الطريق لره خپل شرطونه سته (۱) اول دا چي دغو غلو لره به قوت او دبدبه وي چي پر لار تلونكي خلګ به ددوي مقابله نه سي كولاى (۲) او دوي به لار بند كړې وي يا د سلا په زور او يا به يې په لار كي غټې ډبري اچولي وي چي مثلا موټر وغيره

نسي ځندي تېرېدلای، او يا لوي لوي تيران به يې په لار کي ايښوي (٣) چي دوي به د ښار دباندي وي يعني د ښار څخه لېري، امام طحاوي رحمه الله دا شرط کړی دي چي ددغو غلو او د ښار تر منځ به مسافت د سفر وي (۴) او په دار اسلام کي به وي (۵) دا چي هغه مال چي دوي يې د لارويانو څخه واخلي په قدر د نصاب د سرقې به وي زموږ او امام شافعي او د امام احمد رحمهم الله په نزد، او امام مالك او ابو ثور رحمه الله وايي چي دا شرط نه دي (۶) چي قطاع الطريق به ټوله بېګانه خلك وي د مال د خاوندانو څخه، حتی که په طاع الطريق کي اصل ذي رحم محرم د مال والاوو او يا کوچني او لېوني پکښې و پر دوي قطع نسته (٧) چي دغه اموال چي دوي د خلکو څخه اخيستی وي او دوي ونيول سي هغه به قبل توبه ددوي وي، او که دغه غله چي د خلکو مالونه يې لوټ کړي وه بعد التوبه ونيول سول بيا قطع نسته باندي هذا مافی البنايه مع الزياده.

قال المصنف رحمه الله ﴿فاخذوا قبل ان ياخذوا مالا او يقتلوا نفسا حبسهم الامام حتی يحدثوا التوبة﴾ او که دوي يعني قطاع الطريق ونيول سول د مخه تر دې چي دوي دي د چا څخه مال اخستی وي او يا دې څوك وژلی وي، نو امام المسلمين دي دوي بانديان کړي تر هغو پوري چي دوي توبه کاږي، او په مجمع الانهر کي وايي تر هغو پوري دي دوي بنديان وي چي علامات په دوي کي د صالحانو خالکو پيدا کېږي، او امام شافعي رحمه الله وايي چي دوي دي په مذکوره صورت کي د وطن څخه وشړل سي، موږ وايو چي په شړلو کي ددوي سد باب د قطع الطريق نه راځي.

قال ﴿ان اخذوا مال مسلم او ذمی والماخوذ اذا قسم علی جماعتهم اصاب کل واحد منهم عشرة دراهم فصاعدا او ما تبلغ قیمته ذالك قطع الامام ایدیهم وارجلهم من خلاف﴾ او که دوي اخستی و مال د مسلمان یا د اهل ذمه څخه او اخیسته سوی مال یاني چي نقود وي نو ددوي جماعت ته لس لس درهمه ورسېدل او یا بالاتر هغه، او یا قیمت د ماخوذ شي یاني که د غیر نقود څخه وي اندازې ته د نصاب سرقه رسېدل وتهولو ته، نو دي امام پرې کړي لاسونه او پښې ددوي پر خلاف یاني رسته لاس دې وربرې کړي او چپه پښه ولي چي دوي د غلا سره لار هم خوفناکه کړې وه، نو قطع الرجل یې جزا د اخافت الطریق ده.

پوښتنه:- چي مراد د من خلاف څخه دادي چي رسته لاس دې وربرې کي او چپه پښه وقد مر فائدة من خلاف یعني که یې د یوه طرف او جهته څخه وربرې کي جنس منفعت د تلو فوتېږي.

فائده:- په جوهره کي وایي چي غله ته هلته قطاع الطریق ویل کېږي چي داسي ځای یې نېولی وي چي د هغه ځای څخه چا ته فریاد نه رسېږي او که فریاد رسېدي لکه کلي ته نژدې د چا څخه روپۍ وغیره واخلي هغه قطاع الطریق نه دي بلکه غل دي نو حکومت چي دی ونسي امر دې کړي چي هغه اخیستي روپۍ وغیره ومالك ته رد کړه او ادب یعني تعزیر دي هم ورکړي او بندي دې هم کړي ولي چي غټ جنایت یې کړی دی.

پوښتنه:- لاس یې پرې کېږي او که نه ؟

**ځواب**:- دا سړی لغوي غل دي، شرعي غل يعني چي لاس يې پرې کېږي نه دي ولي دې سړي خو په علانيه شی او مال يوړي او د شرعي غله په مفهوم کي کما مر اخفا معتبره ده.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان قتلوا نفسا ولم ياخذوا مالا قتلهم الامام حدا فان عفى الاولياء عنهم لا يلتفت الى عفوهم﴾ او که دغو قطاع الطريقو سړی وژلي وي يعني که څه هم يو سړی وي نو امام دي دوي ټوله مړه کړي د حد دلاره او که عفوه وکړه اولياء وو د مقتول وه دوي ته، د هغو وعفوي ته دي امام نه ګوري ولي دا حق د شرعي شريفي دي.

**فائده**:- دا قتل سياستاً دي قصاص نه دي ولذلك لايسقط بعفو الاولياء" نو اطلاق د حد مجازي دي، قال عليه الصلوة والسلام تعافوا الحدود فيما بينهم فاذا ارتفعت الى الامام فلا عفا الله عنه وان عفا، حموي.

قال ﴿وان قتلوا واخذوا مالا فالامام بالخيار ان شاء قطع ايديهم وارجلهم من خلاف وقتلهم او صلبهم﴾ او که چېرې دا قطاع الطريقو مړي کړي وه يعني يا يو يا دوه وهكذا مسافر يې وژلي وه او مالونه يې هم ځندي اخستي وه، نو امام لره اختيار دي که يې خوښه وي لاسونه او پښې دې وربرې کړي رسته او چپه او بيا دې قتل کړي او يا دې په دار کړي يعني دوه عذابه دي ورکړي چي قطع او قتل يا صلب دي.

قال ﴿وان شاء قتلهم وان شاء صلبهم﴾ او كه يې خوښه وي يو عذاب دي ورکړي چې قتل دي يا صلب دي يعني لاسونه او پښې دې نه وريږې كوي.

پوهنه:- چې قدوري امام ته اختيار ورکړې په منځ كې د صلب او د ترك د صلب، وهو الزاهر الروايت.

او د امام ابو يوسف رحمه الله څخه روايت دي چې صلب دې نه پرېږدي لانه المنصوص عليه والمقصود فى الصلب التشهير، تاچې نور خلګ عبرت ځندي واخلي، صاحب الهدايه وايي چې اصل تشهير خو په قتل كي دي او صلب د پاره د مبالغې فى التشهير دي نو ځكه امام ته اختيار سته.

پوهنه:- چې خداى پاك جل جلاله جزاء د قطاع الطريق په دې آيت مبارك كې بيان كړې ده" انما جزاء الذين يحاربون الله ورسوله" اي يحربون اولياء الله لان المحاربة لا يتصور مع الله والمحاربة مع الرسوله خروجهم عن كثر فانزل الله جل ذكره المحاربة مع اوليائه بمنزلة المحاربة معه تعالى كما ورد فى الحديث يقول الله تعالى من اهان لى وليا فقد بارزنى بالمحاربة" ويسعون فى الارض فسادا اى لاجل الفساد" ان يقتلوا و معناه من غير الصلب يعنى ان افردوا القتل" او يصلبوا اى مع القتل ان جمعوا بين القتل واخذ المال" او تقطع ايديهم وارجلهم من خلاف" ان اخذ المال فقط او ينفوا من الارض اى بالحبس حتى يتوبوا" مدارك مع زيادة وحذف.

فائده:- ملا علي قاري په شرحه كې د منار وايي وكذا العلامه محمد جيون رحمه الله فى نور الانوار چې مراد د مولى جل جلاله په دې آيت كي

تقسيم دي د عذابو پر جناياتو د قطاع الطريق چي هغه جنايات څلور دي (۱) اول اخستل د مال دي بېله قتله د چا (۲) قتل بدون اخذ المال (۳) واخذ المال والقتل جميعاً (۴) بېرول د مسافرينو بېله قتله او اخذ المال" نو مولى ﷻ په مقابل کي ددغو څلورو جناياتو څلور جزا ګاني وټاکلې، او د جزاء سخت والى يې په قدر د سخت والي د جنايت د ولي رب ﷻ حکيم مطلق دي او دده د شانه سره لائقه نه ده چي ډېره سخته جزاء دي پر سپك جنايت وکړي او يا دي سپکه جزاء پر ډېر سخت جنايت ورکړي.

فائده:- په دې آيت مبارك اختيار د امام نه دي مطلقا، ياني که پر سخت جنايت سپکه جزاء ورکوي او که پر سپك جنايت سخت جزاء ورکوي کما ذهب اليه مالك رحمه الله بلکه مقصود تقسيم دي کمامر، فتامل فى اغلظ الجنايات واخفها وبين بين وکذا فى اغلظ الاجزية واخفها وبين بين، اشهر مع زياده.

قال ﴿ويصلب حياً ويبعج بطنه برمح الى ان يموت ولا يصلب اكثر من ثلثة ايام﴾ او په دار دې کي ژوندى او نس دې ورڅېري کړي دده په نېزه سره تر هغه وخته پوري چي مري، او بعض فقهاء وايي چي پر چپه تي دې په نېزه ووهي او بيا دې نېزه راکش کړي د نس وخواته او په نس دې ورچخ کړي.

پوه شه:- چي مذکور فى المتن زاهر الروايت دي او فقيه ابو جعفر الطحاوي رحمه الله وايي چي پس له وژلو دې په دار کړي، دى وايي چي ژوندى په داروال خو يو مثلت دي او بل تعذيب دي د بن آدم بې فائدې

صاحب جوهره وايي چي مذكور في المتن اصح دي ولي صلب د ژوندي ابلغ په زجر كي د نورو خلكو دي تر صلب بعد الموت، او پر دار دې نه پرېږدي بالاتر درو ورځو، ولي چي د مړي هيئت انساني د پر زر تغير خوري او بد بوی يې هم زياتېږي او نور زوندي انسانان متاثره کېږي يعني تر درې ورځي وروسته دې د مصلوب قريبانو ته اجازه ورکړي چي دفن يې کړي، او د امام ملك رحمه الله ځخه روايت دي چي مقدار د مکث د مصلوب پر دار باندي مفوض ورائه ته د امام دي. او امام احمد رحمه الله وايي چي دومره زمانه دي په دار وي چي تشهير راځي، او امام شافعي رحمه الله د متن د مذهب سره موافق دي، او د امام ابو يوسف رحمه الله ځخه روايت دي چي تر هغو پوري دي په دار وي چي ټوټه ټوټه کېږي او په خپله رايله کېږي وهذه رواية شاذة عنه رحمه الله، رمز الحقائق شرح كنز الدقائق، والجوهره شرح القدوري، والفقير الكندهاري.

**تنبيه**:- چي د فقهاؤ د کتابو سره سم د صلب او يا په اصطلاح د دار کيفيت داسي و چي يو لرګی به يې په مځکه کي محکمه ښخ کړی او يوه اندازه لوړ به يې بل لرګی عرض په دغه لرګي پوري وتاړه او دريم لرګي به يې د هغه دوهم لرګي لوړ وتاړه په اول لرګي پوري او د سر لرګی به د منځ د لرګي ځخه دومره لوړ و چي سړی د منځ پر لرګي ځړېدلی وای د سر لرګي ته يې لاسونه نه رسېدل، نو بيا به يې مصلوب پر دوهم لرګي ودروی يوه پښه د اول لرګي ويو خواته او بله پښه وبله خوا ته او لاسونه به يې د سر په لرګي پوري ټېنګ وروتړل، او بيا به يې په ژوند په چپه تي کي او په نس کي په نېزه وواهه تر هغو پوري چي ساه

د مصلوب ختلای وروسته بې نېزه څندي راوکښه او مصلوب به يې پر هغو لرګو پرېښوی.

**درویش وايي** :- چي په وروستني زمانو کي صورت د صلب قسم قسم بدل سوی دي، ولاباس به لان المقصود القتل حياً فى الهواء بشق البطن بالرمح اعاذ نا الله منه، او دا ټوله سختی چي د قطاع الطريق سره کېږي د پاره د زجر د خلګو د ورته کار څخه.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿فان كان فيهم صبى او مجنون او ذورحم محرم من المقطوع عليه سقط الحد عن الباقين وصار القتل الى الاولياء ان شاؤا قتلوا وان شاؤا عفوا وان باشر القتل واحد منهم اجرى القتل على جماعتهم﴾ او که و په قطاع الطريقو کي کوچنی يعني نابالغه او يا لېونی، او يا ذی رحم محرم لکه پلار يا ورور وغيرهما د هغه چا چي پر هغه لار قطعه سوې ده ساقط دي حد د ټولو قطاع الطريقو څخه، ولي چي قطع الطريق يو جنايت دي چي په ټولو پوري قائم دي، نو چي د بعضو ددوي لکه صبي وغيره سبب د حد نه سو، نو د نورو قطاع الطريقو فعل جزء د علت د حد دي، فلا يثبت الحد بجزء العلة لکه دوه کسه چي يو ځای يو په قصده سره او بل په خطاء يو بل سړی مړ کړي د عامل څخه هم حد ساقط دي لعدم كون فعل الخاطين موجبا للقصاص.

**فائده**:- په دې کي فرق نسته چي هغه مال ماخوذ شريکي وي د مقطوع عليهم او د ذورحم د يوه د زوي او که نه وي شريکي ولي چي جنايت يو دي فامتناع الحد فى حق الواحد يوجب فى حق الباقين، منح

او اوس چي سياستاً حد ساقط سو چي حق د شرح انور و. بيا حق د قصاص واولياؤ ته د مقتول سپارل کېږي نو که ددوي خوښه وي قطاع الطريق دي ټولـه قصاص مړه کړي او که يې خوښه وي عفو دي ورته وکړي او که يې وبخښله حکومت دې سياسةً څه وخت په بند کي وساتي، در، او که قتل د مقتول يو معين سړی د قطاع الطريق کړی و قتل دي پر ټولو قطاع الطريق جاري کړه سي که څه هم مباشر د قتل يو دي، ولي دا قتل د ټولو جزاء المحاربی مع الله وسوله ده نو که هغه مباشر د قتل يو دي لکن هغه نور يې معاونين دي په قطع الطريق کي. امام شافعي رحمه الله قتل يوازي پر مباشر وايي والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

## ابيات

حقيقة لعشق حقيقى " كل صبح وكل اشراقى
تبكى عينى بدمع شتاقى" قد لسعت حية الهوىٰ كبدى
فلا طبيب لها ولا راقى" الا الحبيب الذى شغفت به
فعنده رقيتى وترياقى.

دابيتونه نبي کريم ﷺ د يوه اعرابي څخه واورېدل او هغه يې امر کړي په اعاده د دغو بيتو، كذا فى هامش مكتوبات الشريف للامام الربانى مجدد الالف الثاني رحمه الله ، درويش.

# ﴿كتاب الاشربة﴾

دا كتاب دي په بيان كي د مشروباتو، يعني المحرمة.

ربط:- چي مصنف رحمه الله چي فارغ سو د بيان د سارق الاموال د احكامو څخه شروع يې وكړه په بيان كي د سارق العقل چي مشروبات محرمه دي، كما روى عن على رضي الله عنه لااشرب ما يسرق عقلي.

فائده:- اشربه جمع د شراب ده او شرب په معنا د مشروب دي هر هغه د څښلو شي ته وايي كه حلال وي او كه حرام، او شرب په اصطلاح كي د شرع انوري نوم دي د مسكر او حرام مشروب.

مسئله:- په دې باب كي به ته حرام اشربه وپېژني ماسوا د هغو څخه چي مباح دي، لان اشياء كلها على الاباحة فى الاصل والتفصيل فى كتب الاصول.

قال المصنف رحمه الله ﴿الاشربة المحرمة اربعة، الخمر وهى عصير العنب اذغلا او اشتد وقذف بالزبد﴾ او حرام مشروبات څلور دي اول په نامه د خمر چي په عربي ژبه كي يادېږي، او هغه شيره د انګورو ده يعني چي انګور چختاڼ كړي او اوبه يې وباسي او په لوښي كي يې واچوي او په خپله جوش وكړي او سختي سي يعني صالح د اسكار سي او ځګونه راوغورځوي چي هيڅ ځګ پكښې پاته نه سي يعني صافي نري اوبه پاته سي.

ربط:- چي دا مذهب دي د امام اعظم رحمه الله دى وايي چي غليان ابتداء د شدت ده يعني صلوح د اسكار، او قذف بالزبد يې انتهاء د

شدت ده ولي چي په قذف بالزبد سره باقي اوبه د خيرو څخه خلاصېږي، او ياران او ائمه ثلاثه رحمهم الله قذف بالزبد شرط نه بولي ولي قبل القذف بالزبد يې هم خمر بولي، حاصل د خبري دادي چي غليان او شدت شرط بالاجماع دي وفى القذف اختلاف لكن احتياط په مذهب كي د امام اعظم رحمه الله دي يعني بېله قذف دي چښونكي نه په حد كوي، مجمع الانهر، درويش، نهايه، شرح الوقايه.

**فوائد**:- ماء العنب په شروط مذكوره وو سره اتفاقا خمر دي، او بعض فقهاء وايي چي هر مسكر خمر دي، لقوله عليه السلام كل مسكر حرام كما فى المسلم" وبدليل قوله عليه السلام الخمر من هاتين الشجرتين النخلة والعنبة اخرجه اصحاب الصحاح الستة الا البخارى.

او بل دليل دا وايي چي خمر مشتق د مخامرة څخه دي او مخامره دعقل پټولو ته وايي او هر مسكر عقل پټوي.

والجواب عن الحديث الاول دادي چي په هغه حديث كي يحىٰ بن معين رحمه الله طعن ويلي دي او دى امام متقن د جرح او تعديل دي حتىٰ چي امام احمد بن حمبل رحمه الله وايي هر حديث چي يحىٰ بن معين يې نه پېژني هغه حديث نه دي، كذا فى العنايه.

او د دوهم حديث جواب دادي چي مقصود په دې حديث كي بيان د حكم دي چي حرمت دي او نقيع التمر په مذكوره شرائطو حرام دي زمونږ په نبېز هم او دا نه مقصود چي بيان د ماهيت د خمر څه دي لانه عليه السلام بعث لبيان الاحكام لالبيان حقائق الاشئاً.

**درويش وايي**:- چي دا جواب د اول حديث هم كېدلاى سي مع قطع النظر عن جرح يحىٰ بن معين رحمه الله كما لايخفى او هغه دليل چي دوي

ووایـه چي خمر مشتق آه د هغه جواب چي وجه تسمیه په اتفاق د علماء اطراد نه غواړي یعنې شی چي مسمیٰ سو په یو نامه په سبب د یوې وجهي دا نه ده روا چي بل شي چي داوجه د تسمیې پکښې وي هغه دي هم په داغه نامه مسمیٰ سي مثلا قارورة بنیبنې ته وایي وجه تسمیه یې داده چي شی قرار پکښي نسي، نو شی په ډېرو نورو لوښو کي هم قرار نسي لکه ګډوه کوزه وغیره نو هغه ته خو څوك قاروره نه وایي وامثاله کثیره، په نحن فیه چي ماء العنب ته په شروط مذکوره وو سره خمر وایي په سبب د مخامري د عقل نو دا نه ده لازمه چي هر شي مخامره د عقل راوستله هغه به هم د خمر په نامه یادېږي، البته حکم چي حرمت دي یو دي ولاننکره.

قـال المصنف رحمه الله ﴿والعصیر اذا طبخ حتیٰ ذهب اقل من ثلثیه﴾ او د انګورو اوبه چي په اور ویشول سي چي کم تر دوه ثلثه یې وچي سي.

**پښتو شرح**:- چي په هدایه کي وایي چي ایشول د عصیر پر دوه قسمه دي یو دادي چي لږ جوش ورکړي چي په عربي ژبه یې باذق بولي، او بل منصف بولي چي نیمایي اوبه یې وچي سي په ایشولو سره، وکل ذالك حرام عندنا، اذا غلا واشتد وقذف بالزبد بالاتفاق، واذا غلا واشتد فقط علی الاختلاف کما مر آنفاً دلیل د حرمت یې دادي چي باذق او منصب ډېر خوندور شربت دي ددې وجهي فاسقان پر جمع کېږي نو څکه یې شرب حرام دي دفعاً للفساد، او امام اوزاعی رحمه الله او بعض معتزله وایي چي شرب یې مباح دي، لانه مشروب طیب ولیس بخمر.

قال ﴿ونقيع التمر ونقيع الزبيب اذا غلا واشتد ونبيذ التمر والزبيب اذا طبخ كل واحد منهما ادنى طبخه حلال وان اشتد اذا شرب منه ما يغلب على ظنه انه لا يسكره من غير لهو ولا طرب﴾ او نقيع التمر او نقيع د وچکو د انګورو چي جوش په خپله وکړي او سختي سي يعني صالح د اسکار وګرځي.

**پوهنه**:- چي نقيع په معنا د منقوع دي د عربو د اصطلاح سره سم دوي خرما يا وچکي مابنام په اوبو کي خشتوي او سهار يا بله ورځ لاس پکښې ووهي او دا خوري اوبه چيښي نو دغه اوبه چي جوش وکړي او سختي سوې او قذف بالزبد يې هم کړي و چښل يې حرام دي، او شريك بن عبد الله وايي چي چښل يې مباح دي وان قذف بالزبد دی وايي چي خدای ﷻ په ځای کي د احسان او امتنان پر موږ باندي داسي فرمايلي دي، تخذون منه سكرا ورزقا حسنا ولا امتنان بالحرام" او موږ وايي چي عليه السلام فرمايلي دي، الخمر من هاتين الشجرتين واشار الى الكرمة والنخلة" او بل اجماع د صحابه کرامو ﷺ هم پر حرمت ده بالشروط الثلاثه، او د آيت جواب دادي چي دا امتنان هغه وخت و چي ټولو اشربه حتى الخمر مباح وه، هدايه منح درويش. او نبيذ د خرما او نبيذ د اوچکو چي پر اور پخې سي هر يو ددوي په لږ پخېدو سره حلال دي دا ټوله که څه هم سختي سي يعني قابل د اسکار وګرځي چي سړی يې وچښي د دغو مذکوراتو څخه دومره اندازه چي دغه اندازه په غالب ګمان دد چي ما نه مستوي يعني عقل مي مغلوبه نه ګرځي او دا چښل

يې هم صرف د ساتېري د پاره او د طبيعت د خوشحاله كېدو د پاره نه وي بلكه د ضعف او تداوي د پاره وي.

**فـائـده**:- دا مذهب دي د شيخينو او امام محمد رحمه الله وايي چې چيښل د مذكوراتو حرام دي او اختلاف هم په دې كې دي چې دغه چيښل يې د پاره د تقوى فى العبادة وي او يا د پاره د هضم د طعام وي او يا د پاره د تداوي وي او كه دغه اغراض نه وي پكښې بلكه لكه عوام الناس چې صرف د طبيعت رستګي او خوشحالي د پاره چيښي هغه حرام بالاجماع دي كذا فى الجوهره.

**ترويش وايي**:- چې مذهب د امام محمد رحمه الله اقرب دي وتقوى ته ولې عوام الناس ته لاره پيدا كېږي په شرب كي د دغو صالح الاسكار شيانو په بهانه د تداوي وغيره، او بل عوام الناس د غالب الظن په معنا نه پوهېږي البته د ډېر تقوى داره سړي ته چې د اسكار غرض بالكليه نه لري او صرف او صرف د تداوي غرض يې وي مثلاً نو حلال دي د شيخينو په نيز.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا باس بالخليطين﴾ او پروا نسته يعنې حلال دي خليطين.

**پوهـه**:- چې خليطين دا بولي چې نقيع التمر او نقيع الزبيب سره ګډ كړي او بيا يې لږ ويشوي او بيا يې پرېږدي حتى چې پخپله بيا جوش وكړي او سخت سي په معنا مذكوره سره لما رويت عائشه رضي الله عنها چې موږ به يو مټ خرما او يو مټ وڅكي په يوه مشكولا كي سره واچولې او اوبه به مو ورواچولې نو سهار چې به موږ دا نبيذ جوړ كي او عليه

السلام ته به مو رواړي نو ده مبارك به مابنام چښی، او چي مابنام به مو جوړ کړي سهار به يې چښی

پوښتنه:- په حديث شريف کي راغلي دي چي روايت يې بخاري شريف او نورو د احاديثو کتابو هم کړي دي د جابر ﷺ څخه چي ﷺ نهي کړې ده د نبيذ التمر او الزبيب جميعاً او داغه رنګه يې نهي کړې ده د نبيذ څخه د لندې خرما چي پخه وي او د غوره خرما يو ځای؟

ځواب:- ابراهيم نخعي رحمه الله وايي چي دا نهي هلته ﷺ کړې ده چي پر خلکو کاختي او سختي وه تاچي اغنياء په يوه نبيذ سره ګزاره او په بل نبيذ سره د همسايه جائع سره کهمك وکړي ولي چي ﷺ مکروه کنړلې دا خبره چي يو سړی په نعمت د خدای ﷻ موړ وي او همسايه يې وږي وي، او اباحت د خليطينو د نبيذ چي عائشه رضي الله عنها يي روايت کړي پر حال د فراخي د رزق د خلکو محمول دي، غاية البيان، کفايه، درويش،

قال المصنف رحمه الله ﴿ونبيذ العسل والتين والحنطة والشعير والذرة حلال﴾ او نبيذ د عسلو، د انځرو، د غنمو، د اوربشو او د جورو حلال دي، که څه هم په اور يې نه ويشوي ولي د شرابو خاصيت په دغه انبذه وو کي نسته، د شرابو خاصيت دادي چي لږ چښل يې سړی وډېرو چښلو ته ورجلبوي کما قالوا.

پوښتنه:- چي په اوسنۍ زمانه کي هم په بعض ډاکټري دواخانو کي يو قسم بوتلان راوتلي دي چي پر هغو ماء الشعير نوشته دي يعني د اوربشو اوبه او د دواخانه والا يې بعض هغه کسانو ته ورکوي چي هغه ودوي ته د جماعو د کمزوري شکايت وکړي، او هغو کسانو دغه بوتل و

درويش ته ښكاره كړي او پوښتنه يې وكړه چي ددې شربتو چښل روا دي او كه نه، درويش پوښتنه څندي وكړه آيا تا تر اوسه دغه بوتل چښلي دي ؟ ده ويل هو درې څلور شپې مي چښلي دي، درويش ورته وويل چي وروسته تر چښلو تاته څه حالت پيدا سي ده وويل اول خو مي ډېر پرسر درد سي او لكه نشه داسي سم وروسته آهسته آهسته هغه كيفيت كم سي او حيواني شهوت مي په جوش راسي او ډېري د خوند جماعوي د ماينې سره وكړم، درويش ورته وويل دا چي تا بيان كړې دا خواصي د شرابو دي او ددې چښل وتاته بلكه وهر چا ته حرام بولم، او هغه حديث مبارك په ياد راغلي چي ﷺ فرمايلي دي چي په اخره زمانه كي به شراب خوري په امت مرحومه كي ډېره سي لكن په يوه او بل نامه بې خلګ چښي والله اعلم بالصواب.

قال ﴿وعصير العنب اذا طبخ حتٰى ذهب ثلثاه حلال وان اشتد﴾ او اوبه د انګورو چي ويشول سي حتٰى چي دوې حصې يې ولاړې سي يعني يوه حصه يې پاته سي حلال دي كه څه هم قابل د سكر وګرځي يعني چي ډېر يې سړى وخوري ولي په حديث كي د ابو موسٰى اشعري ﷺ چي نسائي يې روايت كړي دي راغلي دي چي ماطلاء چي ددغه مشروب نوم دي هغه چښلي ده چي دوې حصې به يې وچي سوې او يوه حصه به يې پاته وه، او ابو داؤد وايي چي ما پوښتنه وكړه د احمد بن حمبل رحمه الله څخه په باره كي د طلاء چي دوه ثلثه يې تللې وي او يو ثلث يې پاته وي ده راته وويل لاباس به وهذا قول ابي حنيفه رحمه الله وابي يوسف رحمه الله، قال محمد والائمه ثلاثه رحمه الله ان كل ما اسكر كثيره وقليله

حرام من اى نوع كان لقوله عليه السلام كل مسكر خمر وكل مسكر حرام"

**درويش وايي**:- چي دا اختلاف په هغه صورت كي دي چي دغه طلاء وغيره سوى الخمر سړى د قوت بدني د پاره چښي او تر حد د اسكار كمه وچښي، او كه يې د ساتېري او طبعيت رستگي د پاره چښله هغه حرام بالاجماع دي، والفتوىٰ فى هذا الباب يطلب من كتب فتاوى الفقه الحنفى والفقير ليس اهلا للفتوىٰ.

**پوښتنه**:- په افغانستان كي خصوصاً په هغو ځايو كي چي انگور پكښې ډېر وي، د سپينو كشمشو د انگورو اوبه ډبري وباسي او بيا يې و ديگ ته واچوي او وېشوي تر ډېره پوري چي دوښايې بولي او بعض خلگ په اخيري جوشو كي د هندواني چڼوسكي هم ور اچوي او په هغه دوښا كي يې پاخه كړي، او دادوښا نو دوي ژمي او يخ ته ساتي ولي دوښا طبيعةً ډېره گرمه ده نو په ژمي غرمه يو اندازه راواخلي او ډوډۍ په پوري كوي او هغه چڼسكي هم ورسره خوري او بعض خلگ د غوا غوړي پر اور سره كړه هغه هم پر واچوي او په مزه مزه ډوډۍ پوري خوري آيا دا دوښا حلاله ده او كه حرامه؟

**ځواب**:- دوښا حلاله ده په څو وجهي (۱) شراب او نور مسكرات خو بهېدونكي اوبه وي او دوښا خو لكه خټه مستې داسي ده (۲) د مسكراتو عموما قانون دادي چي لږ يې سړى وچښي باعث پر چښلو د كثير گرځي، او دوښا چي يوڅه سړى وخوري خصوصاً چي بېله ډوډۍ يې وخوري نوره نسي خوړلاى بلكه د نور خوړلو څخه يې نفرت كېږي، (۳) دوښا موړ پخپله ليدلي او جوړه كړې ده په دوښا كي د انگورو د

اوبو په لسو حصو كي تقريباً يوه حصه پاتېږي (۴) ومسكراتو ته حتى الخمر چي د هندواني چړسكي ورواچوي د اسكار څخه يې باسي او دوښا ته يې عموماً خلك وراچوي، مسكراتو حتي الخمر ته هيڅ څوك غوړي نه ور اچوي او كه يې ور واچوي طبع د مسكر بدلېږي، هذا ما عندی وجواب السوال المذكور والعلم عند الله العزيز العليم.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا باس بالانتباز فی الدباء والحنتم والمزفت والنقير﴾ او پروا نسته په نبيذ جوړولو كي په كدوكي چي په افغانستان كي به په پخوا زمانه كي طالبانو شلومبې وراچولې او ډوډۍ به يې پوري خوړله، او قديم عربو په هغه كي شراب جوړول، او داغه رنګه نبيذ پروا نه لري د خاورو په ښېښه يې منګي كي چي عربستان ته به د يمن د خوا راتله او عربو په هغو كي هم شراب جوړوله، او په افغانستان كي دغه منګيان د غوړو اچولو د پاره مخصوص دي او بعض خلك يې د سركې د پاره هم استعمالوي، او داغه رنګه پروا نسته د نبيذ په جوړولو كي په مزفت لوښي كي يعنې په شنه يا سره رنګ په قبل الطبخ باطن وركه كنړه كړې وي چي دغه لوښي په كار خانه مشهور لوښي دي او عربو په دغه لوښو او منګيانو كي شراب جوړوله، او په پاكستان او افغانستان كي د اوبو منګيان دي، او داغه رنګه پروا نسته په نبيذ د لرګي په لوښي كي چي په پخوا زمانه كي به خلكو د لرګي منځ په نجار وكښي بيا به يې د كاشين وغيره پر ډول ظرف جوړ كي او د ډوډۍ وښوروا وغيره به يې پكښې خوړله او عربو په دغه كي شراب جوړوله.

پوهنه:- چي د دغو د نبيذ څخه آنحضرت ﷺ نهي کړې وه کما فی البخاري وغيره لكن دا نهي هغه وخت وه چي شراب تازه حرام سوي وه او دغه لوښي كما ذكرنا د شرابو لوښي وه او د شرابو تاثير پكښې و نو عليه السلام احتياطاً د دغو لوښو د نبيذ څخه نهي وكړه چي نه بايد د سړي به نيت د نبيذ وي او په سبب د تاثير په دغه لوښو كي هغه نبيذ نه بايد شراب او سكر ګرځيدلي وي، او وروسته چي دغه لوښي د شرابو د مذكوره څلورو نوعو څخه خلګو مات او يا يې وغورځول او ورك سوله نو آنحضرت ﷺ بيرته اجازه د نبيذ په هر لوښي كي وكړه كما فی حواشي البخاري وغيره.

قال المصنف رحمه الله ﴿واذا تخللت الخمر حلت سوءً صارت بنفسها خلا او بشيئ طرح فيها ولا يكره تخليلها﴾ او كه شراب سركه وګرځېدله بيا حلال دي خوا پخپله سركه سي يعني د لمر څخه لوښي د شرابو وسايې ته ايشوول كېږي وبالعكس، او يا نژدې د شرابو لوښي ته اور بل كړي او يا په اچولو سره د يو شي لكه اشخار يا مالګه وغيرهما، او د شرابو څخه سركه جوړول مكروه نه دي وجه عدم كراهت داده چي په سركه ګرځولو كي د شرابو اصلاح د مال ده چي د نجاست څخه طهارت ته ولاړسي او د حرمت څخه و حل ته نو لكه مردار پوست چي دبغ كړي.

پوهنه:- امام احمد او ابو داؤد د انس بن مالك رضي الله عنه څخه داسي روايت كړي دي چي ابو طلحه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وكړه چي زما سره يتيمان دي چي هغو ته په ميراث كي شراب پاته سوي دي نو

څه په وکړو عليه الصلوة والسلام ورته وفرمايل چي توي يې کړي ابو طلحه ﷺ ورته وويل آيا سرکه نه کړو څندي جوړه ؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل يا ، نو دا حديث تصريح ده په دې کي چي تخليل د خمر ناجائز دي؟

ځواب: - اولاً دا حديث مبارك مضطرب دي چي استدلال نه په کېږي ولي چي هم دغه حديث په بل روايت کي داسي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام ورته وويل خلتها يعني سرکه څندي جوړه کړي، وثانيها مع قطع النظر عن الاضطراب دا حديث محمول دي پر ابتداء د اسلام يعني پر هغه وخت چي شراب تازه حرام سوي وه نو په هغه وخت کي عليه الصلوة والسلام ډېره سختي کوله په باره کي د شرابو زجراً لهم عن العادة المالوفة لهم وهی شرب الخمر كذا فی شروح القدوزی.

ټوپنښي وايمي: - چي د شرابو او نورو مسکراتو احکام تاسي د اسلام په دين کي واورېدل لکن افسوس دادي چي په بعضو اسلامي ممالکو کي بېله نوم اخيستلو شراب خانې سته او ډېر خلک يې عادة چښي بعض خلک يې بېله تبديل د نامه چښي او بعض خلک يو نوم او بل نوم پر ايږدي او چښي يې، بلکه عجيبه خو لا داده چي بعض خلک چي نفلي حجونه هم کوي او پنځه وخته د جماعت لمونځ هم کوي او په اسلامي لباس ملبوس هم وي څه وخت چي د امريکايانو په مجلس کي شامل سيْ او امريکايانو ته ښائيسته ښځي رقص کوي دوي هم ورته ناست وي او څه وخت چي د شرابو د بوتلانو تقسيم شروع سي حاجي صاحب هم يو بوتل پر سر راپورته کړي دا ټوله کارونه د امريکايانو د خوشحالی د پاره کوی،

حمید الله غزنوي مرحوم وایي" چو بینم دین احمد ﷺ در غریبي " دلم سوزن زچشم خون جاري" وقد اخبر المخبر الصادق ﷺ عن امثال هذه الاحوال حیث قال ﷺ لتتبعن سنن من قبلکم شبراً بشبر قیل الیهود والنصارٰی قال فمن او کما قال ﷺ یعنې بل څوك یې مراد دي چي یهود او نصارٰی مراد نه وي، یعني دیگر چه کس مراد است که یهود ونصارٰی مراد نباشد، یعني اور کون لوگ مراد ہے جبکه یهود اور نصارٰی مراد نه هون.

**درویش وایي**:- چي زه په دې خوشحاله یم چي زما ژوند اوس هم اخیر دي د فتنو، اللهم لاتفتنی فی آخر عمری.

## ﴿كتاب الصيد والذبائح﴾

دا کتاب دي په بیان کي د ښکار او مذبوحه حیواناتو

**پوه شه**:- چي صید په لغت کي ښکار کولو ته وایي یعني مصدر دي او مراد دلته معنا د مفعول ده وهذه التسمیة شائعة فی العربی او ذبائح هم جمعه ده د ذبیحة په معنا د مذبوح دي.

**فائده**:- شارحان د قدوري وایي چي مناسبت ددې کتاب او د ماقبل کتاب چي کتاب الاشربه وو په دېرو وجهو کي سته یوه داده چي شراب سبب د خوشحالي د شارب دي، او صید هم سبب د خوشحالي د صائد دي، او بل دا چي اشربه چیښونکي شیان وه او صید خوراکي شی دي والمناسبة بین المشروب والمطعوم ظاهرة، او بل دا چي په مشروباتو کي حلال او حرام وه کما مر بیانه وفی صید ایضا حلال وحرام کما

سيئاتي تفصيله، او كتاب الاشربة يې د مخه كړه ولي چي د حرام ځخه ځان ساتنه ډېره مهمه ده او د صيد او ذبائحو مناسبت خو ښكاره دي.

قال المصنف رحمه الله ﴿يجوز الاصطياد بالكلب المعلم والفهد والبازى وسائر الجوارح المعلمة﴾ روا دي ښكار كول په سپي سره چي تعليم يافته وي، او داغه رنګه په پړ سره، او په هر هغه باز سره او په ټولو حيواناتو سره چي ټپي كونكي د صيد وي او تعليم يافته وي لكه شاهين مرغه او ځرخك مرغه وغيرها.

فائده:- پوه سه چي اصل دليل د جواز د ښكار كولو چي اصلاً د محرم په بارۀ كي نازل دي دا آيت دي" أُحل لكم (يعني اې محرمانو) صيد البحر وطعامه متاعالكم وللسيارة وحرم عليكم صيد البر مادمتم حرما، ثم قال ﷻ واذا حللتم فاصطادوا، وهذا الجزء الآخير يدل على جواز الاصطياد لغير المحرمين، وانما قلنا على الجواز لان الامره للاباحة كما فى كتب التفاسير والاصول.

پوه سه:- چي د دې ايت د اطلاق ځخه داسي معلومېږي چي ښكار د مايوكل لحمه وما لاياكل دواړه روا دي.

پوښتنه:- د مايوكل لحمه د ښكار كولو فائده خو ښكاره ده، د ما لاياكل لحمه په ښكار كولو كي ځه فائده ده؟

ځواب:- ماسوا د سركوزي ځخه د نورو ما لايوكل لحمه بېله خوراكه ځخه نوري فائدې سته مثلاً د ګيدړي د پوست ځخه خلك قيمتي پوستينان جوړوي، او د پړانګ د پوست پوستين خو بېخي ډېر لوي قيمت لري، او د بعض مالا ياكل لحمه په هډوكو سره خلك ډېري

فائدې اخلي مثلاً د فيل هډوكي ډېر قيمتي دي او اهل صنعت ډېر قيمتي شيان ځنې جوړوي، او د بعض ما لاياكل لحمه د وېښتيانو څخه خلګ فائدې اخلي مثلاً د زمري وېښتيان د ظاهر او باطن د ټپو په ګنډلو كي ډېرې فائدې لري وهكذا نورې فائدې.

**پوښتنه**:- ددې آيت مبارك څخه خو دا نه سوه معلومه چي د كومو حيواناتو غوښې حلالي دي او د كومو دا مرداري دي؟

**ځواب**:- نعم لكن دا آيت مبارك مجمل دي او احاديث نبويه ﷺ ددې آيت د تفصيل الحلال والحرام متكفل دي، درويش.

**فائده**:- د امام ابو يوسف رحمه الله څخه روايت دي چي د جوارحو معلمه وو څخه استثناء دي زمرى او كوړ. ولي چي زمري په سبب د علوهمت دده د بل چا دپاره كار نه كوي او كوړ په سبب د خساسة الطبع د بل چا د پاره ښكار نه كوي.

**درويش وايي**:- وايي چي اولى په دليل كي د استثناء د دغو دوو درندګانو داوه چي دا دوه درندګان تعليم نه قبلوي په سبب مذكور يعني علوالهمت وخساسة الطبع.

**پوښتنه**:- چي خنزير په اتفاق الآراء مستثنى دي، صاحب الهدايه يې دليل داوايي چي خنزير نجس العين دي فلا يجوز الانتفاع به ويرد عليه ان بعض الفقهاء يقولون ان الكلب كالخنزير نجس العين فينبغى ان لايجوز الاصطياد بالكب ايضاً واجاب عنه صاحب المجمع ان النص ورد فى حل الاصطياد بالكلب فلا يقاس هو على الخنزير والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

قال المصنف رحمه الله ﴿وتعليم الكلب ان يترك الاكل ثلث مرات وتعليم البازی ان يرجع اذا دعوته﴾ او زدكړه د سپي داده چي د ښكار غوښي ونه خوري په تجربه د درو وارو.

**درويش وايي**:- چي د سپي پر تعليم قياس دي تعليم د يږ وغيره، او تعليم د باز دادي چي ته يې راوبولې درته راځي درويش وايي چي پر تعليم د باز قياس دي تعليم د نورو ښكاري مرغانو كما عرفتها.

**پوه سه**:- چي دغه تعليم الكلب منقول د ابن عباس رضي الله عنه څخه دي او داغه مذهب دي د يارانو رحمهم الله ولي د تعليم نښانې دادي چي سپي تر خپل عادت چي خوراك د ښكار دی تېر سي، او درې واره په نورو ځايو د اعتبار وړ مدت ده لكه په خيار الشرط كي د بيع درې ورځي تاكل سوي دي، او داغه هم روايت د امام اعظم رحمه الله څخه دي چي ظاهر الروايت هم داغه دي، او په بعض رواياتو كي د امام اعظم رحمه الله نقل راغلي دي چي مدت د تعليم مفوض دي ورايه ته د معلم لاختلاف التعليم بالاختلاف الاشخاص، يعني لكه اختلاف د تعليم د طالبانو چي په اختلاف د استاذانو مختلف كېږي كما هو التجربه، او امام شافعي رحمه الله وايي چي تعليم الكلب په عرف پوري د خلكو اړه لري، او د مرغانو لكه باز وغيره په عرف پوري د ښكاريانو اړه لري او ښكاريان د مرغانو تعليم دغه كنړي چي په دعوت د ښكاري راګرځي وهو مروی عن ابن عباس رضي الله عنه ايضاً.

**تفريع**:- درويش وايي چي بايد خلك وپوهېږي چي د تعليم او تعلم څومره بركت دي چي د نجس الحم حيواناتو په لكه سپی په بركت د

تعلیم او تعلم یې ښکار حلال سو کې څه هم ښکار وژلی وي کما سیئاتي، نو انسانان چي تعلیم او تعلم وکړي باید په نېز د خدای ﷻ ورته مرتبه پیدا کړي، لکن لکه څنګه چي د حیواناتو په تعلیم او تربیه کي امتحان شرط دي داغه رنګه په تعلیم او تعلم کي د انسانانو هم امتحان شرط دي یعني چي د خپل شهواني او عادي حال څخه به رجوع کوي و دعوت ته د رب ﷻ او دده د رسول ﷺ د دعوت یعني ټوله خواهشات نفسیه او عادیه به یې تابع د شریعت غرا وي، نو په نېز د خدای ﷻ او د رسول ﷺ د اعتبار وړ شخص ځندي جوړېږي، مثلا داسي نه ده چي طالب علم دستار بندي وکړه او په محراب کي ودرېدی او پر منبر یې مثلا دعوت او نصیحت شروع کي هغه ورتبې ته د علماء ددین نبوي ﷺ ورسېدي بلکه امتحان شرط دي کما مر.

**قال الشاعر** " واعظان کین جلوه در محراب ومنبر میکنند
چون به خلوت مېروند آن کار دیگر میکنند
وقال الآخر" برزبانت یا صمد پیدا ودر دل یا صنم
اي بباطن کافر وظاهر مسلماني چه سود

الحاصل دادي چي مخالفت د ظاهر او باطن شعبة من شعب النفاق والشرک الخفی کما فی المکتوبات الشریف، وقد دل الاحادیث النبویة ﷺ واقوال الصوفیة الکرام رح وعبارات کتب الشریعة المطهرة علی ذم مثل هذا العالم.

قال المصنف رحمه الله ﴿**فاذا ارسل کلبه المعلم او باذیه او صقره علی صید وذکر اسم الله تعالی علیه عندارساله فاخذ الصید**

وجرحه فمات حل اكله فان اكل منه الكلب او الفهد لم تؤكل وان اكل منه البازی اكل﴾ نو كه ښكاري خپل سپی ايله كړي چي تعليم يافته و، او ياپي باز ايله كړي، او ياپي څرخك ايله كړي په يو ښكار پسې او ښكاري د الله ﷻ اسم ګرامي پر هغه ښكار كونكي شي باندي په وخت كي د ايله كولو په ښكار پسي نو هغه سپي وغيره ونيوى صيد او ټپي يې كي نو صيد مړ سو، روا دي د هغه صيد خوراك او كه خوراك كړي و سپي او يا يږ د ښكار څخه هغه صيد نه خوړل كېږي يعنې خوراك يې نه دي روا، ولي ده چي ښكار كړي دي د ځان د پاره يې كړي دي، او صيد خوړل علامه د عدم تعليم ده يعني دغه سپي تعليم يافته د سره نه و، او كه باز خوراك د ښكار څخه وكړي هغه صيد خوړل كېږي يعنې حلال دي ولي چي شرط د تعليم د باز مثلاً عدم اكل نه دي.

**پښتو ښه**:- چي په صحيح حديث كي چي روايت يې شپږو سرو امامانو رحمهم الله د كتابو د صحاحي وو كړي دي د عدي بن حاتم ﷺ څخه دی وايي چي ما پوښتنه وكړه د ﷺ څخه چي زه ايله كړم خپل سپی او د خدای ﷻ نوم پر ذكر كړم يعنې حكم د ښكار يې څه دي؟

آنحضرت ﷺ وفرمايل چي ته خپل سپی ايله كړې او د خدای ﷻ نوم پر ووايه او هغه سپی صيد ونسي او مړ يې كړي نو خوره يې يعنې حلال دي، او كه سپي د صيد څخه خوارك كړي و بيا يې مه خوره ولي سپي دا ښكار د ځان د پاره كړی دي ستا د پاره يې نه دي كړي، عدي ﷺ وايي چي بيا ما پوښتنه ځندي وكړه چي زه د خپل سپي سره بل سپی

پيدا کړم او صيد يې نيولی وي او زه نه يم خبر چې دا صيد زما سپي نيولی دي او که هغه بل پردي سپي نيولی دي، نو ﷺ راته وويل چې دغه صيد ته مه خوره ولي تاخو د خدای ﷻ نوم پر خپل سپي ويلی دي پر هغه بل سپي دي نه دي ويلی.

قال ﴿وان ادرك المرسل الصيد حياً وجب عليه ان يذكيه وان ترك تزكيته حتى مات لم يؤكل﴾ او که پيدا کړی مرسل د سپي وغيره هغه صيد ژوندی نو واجب ده پر ده چې ذبحه کوي به يې، او که يي ذبحه پرې ښوله تردې چې صيد مړ سو نه خوړل کېږي يعني مردار دي ولي اصل خو په حيواناتو کي ذبحه ده، او سپی، باز او داغه رنګه غښی د جهت څخه د عدم قدرت پر اصل خلف دي د اصل څخه نو چې سړی پر اصل قادر سي نو خلف لغوه دي، لکه سړی چې تيمم ووهي او بيا پر اوبو قادر سي.

ټوله ښه:- چې په جوهره کي وايي چې حکم د عدم اکل هلته دي چې دی يې پر ذبحه قادر سي، او که يې قدرت پر ذبحه نه و او په ښکار کي بالاتر ژوند د مذبوح و هم نه خوړل کېږي فی ظاهر الرواية، وينبغي تفصيل ددې مسئلې پر دې ډول که عدم قدرت پر ذبحه د جهت څخه د عدم د چړې وو مردار دي، او که يې عدم قدرت په سبب د تنګي د وخت و هم مردار دي زموږ په نيز ولي چې صيد د سړي لاس ته ورسي د صيدية څخه وځي نو حکم د ذبح الاضطرار نه پاتېږي، جوهره درويش وعقايه.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان خنقه الكلب ولم يجرحه لم يؤكل﴾ او كه صيد سپي خفه كي او ټپي كړي يې نه و خوراك يې حرام دي ولي په ظاهر الرواية كي جرح شرط د خورك د صيد ده.

**پوهه**:- چي دظاهر رواية مقتضى داده كه سپي د صيد پښتي ورماتي كړې او مړ سو هم نه خوړل كېږي، او د امام اعظم رحمه الله دا روايتهم راغلي دي چي پښتې يې ورماتي كړي هغه خوړل كېږي يعني مردار نه دي ولي پښتې ماتول خو جراحت باطني دي فهو كالجراحة الظاهرة، او دليل د ظاهر الروايت دادي چي معتبر هغه ټپ دي چي سبب وګرځي د وتو د وينو د پښو په ماتولو سره خو وينه نه وځي فهو كالخنق، هدايه.

قال ﴿ ولو شاركه الكلب غير معلم اوكلب مجوسي او كلب لم يذكر اسم الله عليه لم يؤكل﴾ او كه شريك سو د كلب معلم سره په نيولو كي د صيد او په جرحه كي بل سپی چي معلم نه و، او يا د مجوسي سپی، او يا داسي سپی چي پر هغه ذكر داسم الله نه و ويل سوی يعنې په قصد سره ولي كه په هېره ذكر نه وي سوي هغه حلال دي نو په درو سره صورتو كي هغه ښكار نه خوړل كېږي يعني مردار دي لما مر فی حديث عدی بن حاتم رضي الله عنه وقد مر آنفاً.

قال المصنف رحمه الله ﴿واذا رمی الرجل سهماً فسمی الله عند الرمی اكل ما اصابه اذا جرحه السهم فمات﴾ او كه ووشتی يو سړي غشي يعنې صيد يې ووشتي او د خدای جل جلاله نوم يې ذكر كړي په وخت كي د ويشتلو خوړل كېږي هغه صيد چي دا غشی پكښي منبتی

وي او غشي هم دا صيد ټپي کړي وي او بيا مړ سوي وي ولي چي رامي په وشتلو د غشي ذابح کنړل کيږي ولي چي غشي خو آله ده نو ځکه نوم د خداى ﷻ په وخت کي د وشتلو د غشي غواړي.

پوهنه:- چي ټول بدن د ښکار محل دي ددغي نوعي د حلالېدو لکن جرح شرط ده كما مر كذا فى الهدايه.

قال ﴿وان ادركه حياً ذكاه فان ترك تزكيته لم يؤكل﴾ او كه رامي وررسېدى او صيد ژوندى و حلال دې کړي او كه يې ذبح پرېښول بيا يې غوښي نه خوړل کېږي، دليل دادي چي اصل خو په حيواناتو كي ذبح اختياري ده او وشتل د غشي ذبح اضطراري ده نو تر هغو چي سړى پر اصل قادر وي نو بدل د هغه چي ذبح اضطراري ده بې اعتباره ده كما مر سابقاً ايضاً فى صيد الكلب فتذكره.

قال ﴿واذا وقع السهم بالصيد فتحامل حتى غاب عنه ولم يزل فى طلبه حتى اصابه ميتاً اكل فان قعد عن طلبه ثم اصابه ميتاً لم يؤكل﴾ او كه چېري ولګېدي غشي پر صيد لكه هوسى مثلاً او هغه صيد برداشت د غشي وكړي يعني د غشي د تكليف او ټپ سره يې ميدان كړه ولاړي حتى چي د ښكاري څخه غائب سو، او ښكاري يې همېشه په طلب كي و حيتى چي ښكار يې پيدا كړي مړ نو خوړل كېږي يعني حلال دي، او كه چېري ښكاري كښېنستى د طلبه د ښكار او بيا يې پيدا كړي مړ نه خوړل كېږي يعني مردار دي، ددې مسئلې دليل دادي چي ښكار خو غالبا په دښتو او په ځنګلو كي كېږي او هورې ښكار ځان پټولاى سي نو په سبب د دغه ضرورت چي

ښكاري د طلبه څخه نه كېښني ګويا دا صيد دده په حضور كي مړ سو لئلا ينسد باب الاصطياد والجرح فى الدين مرفوع كذا فى شروح القدورى.

قال ﴿وان رمى صيداً فوقع فى المآء لم يؤكل وكذالك ان وقع على سطح او جبل ثم تردى منه على الارض لم يؤكل وان وقع على الارض ابتداءً اكل﴾ او كه ووشتي سړي صيد او هغه په اوبو كي ولوېدى نه خوړل كېږي ولي چي احتمال ددې سته چي د غرقه د اوبو دي مړ سوې وي او كه صيد پر بام ومښتى او يا پر غره او بيا د بامه يا د غره څخه راګېل سو او پر مځكه ولګېدي نه خوړل كېږي ولي چي احتمال ددې سته چي د سقوط د بامه او يا د غره څخه دي سبب د مرګ دده ګرځېدلى وي او كه ابداءً پر مځكه ولګېدى او مړ سو خوړل كېږي ولي چي د وقوع على الارض څخه خو چاره نسته نو دا عذر او ضرورت دي، او د وقوع على السطح او الجبل او فى الماء څخه خو چاره كېږي والفرق ظاهر.

**فائده**:- كفايه والا وايي چي احكام مذكوره د عدم اكل هلته دي چي ټپ مهلك فى الحاله نه وي يعني تر يو څه زماني پوري د ژوند اميد وښكار ته وي او كه جرحه مهلك فى الحاله وه او ژوند د صيد دومره قدر باقي و لكه د مذبوح شي پس له ذبحه څخه او بيا په اوبو كي ولوېدي او يا پړ بام او يا پر غره او بيا مځكي ته راګېل سو هغه تاوان نه لري بلكه حلال دي خوړل كېږي.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿وما اصاب المعراض بعرضه لم يؤكل وان جرحه﴾ او هغه صيد چي معراض غشى وروسېږي په پساره سره هغه نه خوړل کېږي يعني مردار دي او که يې صيد ټپي کړی و يعني سر د معراض غشي چي تېره وي په صيد کي منښتی و او ټپي کړي يې و هغه خوړل کېږي.

پښتو شرح:- چي معراض هغه غشى بولي چي طرفونه يې تېره نه وي او صرف سر يې تېره وي، دليل ددې مسئلې هغه حديث دي د بخاري چي عدي بن حاتم رضي الله عنه وايي چي ما پوښتنه وکړه د عليه السلام څخه په باره کي د معراض غشي د ښکار ده ﷺ وفرمايل" اذا اصاب بحده فكل واذا اصاب بعرضه فلا تاكل.

قال ﴿ولا يؤكل ما اصابه البندقة اذا مات منها﴾ او نه خوړل کېږي هغه صيد چي وروسېږي مرد که چي کوچنيان يې د خاورو څخه جوړوي او چوغکي په ولي چي د بندقه د لګېدو په سبب مړ سي يعني که ښکار ژوندي و او صائد حلال کړي بيا خوړل کېږي دليل د اولي مسئلې دادي چي.نبدقه ماتونکي د هډ ده ټپي کونکي نه ده.

تفريع:- که يې ښکار ووشتي په درنه ډبره که څه يې هم ټپي کړي مردار دي نه خوړل کېږي ولي چي احتمال ددې سته چي صيد دي په سبب د نقل مړ سوی وي نه د جرحه له کبله، او که ډبره سپکه وه او تيره وه چي ټپ وه اکل د صيد يې روا دي.

قال صاحب الهدايه:- والاصل فى هذه المسائل ان الموت اذا كان مضافاً الى الجرح بيقين كان الصيد حلالاً واذا كان مضافاً الى الثقل

بيقين كان حراماً وان وقع الشك ولا يدرى انه مات بالجرح او بالثقل كان حراماً احتياطاً انتهٰى.

**تفريع**:- كه د جاغوري توپك د كارتوس سر ورتېره كړي چي جرحه په كېږي هغه حكم د معراض غشي لري، او كه يې د بارودو د اور په سبب ښكار تېپي كړي هغه مردار دي لكه د بندقي په سبب چي صيد تپي سي او بيا مړ سي، درويش.

قال ﴿واذا رمٰى صيداً فقطع عضواً منه اكل الصيد ولم يؤكل العضو﴾ او كه ښكاري ووشتي يو صيد مثلاً د غره پسه يا هوسۍ يې ووشته نو دې رمي پرې كي يو اندام د صيد مثلاً يو ورون، نو ښكار يعنې صيد خوړل كېږي او هغه جلا كړه سوى اندام يې نه خوړل كېږي، لما فى حديث ابى داؤد والترمذي عن ابى واقد الليثى ﷺ قال العَلَيْهِ ماقطع من البهيمة وهى حية فهو ميتة.

قال ﴿واذا قطعه اثلاثاً والاكثر ممايلى العجز اكل الجميع، وان كان الاكثر ممايلى الراس اكل الاكثر﴾ او كه يې پرې كي صيد درې برخي او ډېره خوا يې د كوناټو خوا وه نو ټوله صيد خوړل كېږي يعنې هغه حصه چي جلا كړه سوې او هغه حصه چي پاته ده ولي چي وروسته تر داغه ټپ د حيوان ژوندي پاته كېده ممكن نه دي په قدر د مذبوح هم نو تر هغه حديث چي دا اوس تېر سو نه لاندي كېږي ولي په حديث مذكوره كي داسي ويل سوي دي وهى حية، او كه يې اكثره برخه يعنې دوه ثلثه ذ سر خوا ته وه يو ثلث ځندي جلا سوى و نو اكثره دې وخوړل سي او هغه يو ثلث چي جلا سو هغه نه خوړل كېږي ولي چي ژوند

د سر د خوا په دوه ثلثه کي ممکن دي بالاتر ژوند د مذبوح حيوان کما يدل عليه التجربه نو تر مذکوره حديث لاندي کېږي، مجمع، درويش.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا يؤكل صيد المجوسى والمرتد والوثنى﴾ او نه خوړل کېږي غوښي د ښکار د آتش فرسته، او نه د مرتد ښکار غوښي غوړل کېږي او نه د بت فرسته د ښکار خوښي خوړل کېږي ولي چي ښکار خو ضبحه اضطراري ده د نوموړو کسانو خو ذبحه اختياري هم مرداره ده کما سيئاتى.

قال ﴿ومن رمى صيداً فاصابه ولم يثخنه ولم يخرجه عن الامتناع فرماه آخر فقتله فهو للثانى ويؤكل﴾ او که په غشي ووشتي صيد نو غشي په صيد کي ومبنتي لکن صيد دا جراحت د تګه څخه سست کړی نه و او نه يې و ايستلیٰ د طاقت څخه د ځان خوندي کولو د صائد څخه بيا بل سړي دا صيد ووشتي او مړ يې کړي نو دا صيد د دوهم سړي دي او غوښي يې خوړل کېږي، دليل ددې مسئلې دادي چي صيد خو د اول رامي څخه ځان خلاص کړي نو دا دوهم رامي اخيستونکي دي د صيد، وروى الزيلعي رحمه الله عن ابى هريره رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ الصيدلمن اخذه لالمن اثاره" نو اول رامي صيدګويا ده ځايه ولاړ کړي، او دوهم رامي يې آخذ دي فهو له، او غوښي يې په دې خوړل کېږي چي دغه صيد ګويا صيد مستقل دي د دوهم رامي.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان كان الاول اثخنه فرماه الثانى فقتله فهو للاول ولم يوكل﴾ او که اول رامي صيد سست کړي و يعني د ځان ساتلو څخه يې استلی و بيا دوهم رامي ووشتی او مړ يې کړي نو دا

ښکار د اول رامي دي او غوښي يې نه خوړل کېږي ولي چي اول رامي دا صيد د ښکار کولو څخه ايستلی دي نو دی حکماً آخذ د ښکار دي، وقد مر ان الصيد لمن آخذه" او غوښي چي يې نه خوړل کېږي ددې کبله چي صيد چي د صيديت څخه ووتی نو حکم د اهلي حيوان لري چي ذبحه اختياري غواړي، نو دوهم رامي چي مړ کي نو داسي مثال يې دي لکه څوك چي د چا پسه وولي او مړ يې کړي نو هغه حرام او مردار دي نو دا موجوده حيوان هم مردار دي فلا يؤكل لحمه.

قال ﴿والثانی ضامن لقيمته للاول غير ما نقصته جراحته﴾ او دوهم رامي ضامن دي د صيد د قيمت د اول رامي د پاره ماسوا د هغه څخه چي تپ د اول رامي و صيد ته تاوان رسولی دي يعني بعض عادل خلك دي داغسي مجروح په جرحه د اول رامي قيمت کړي هر څه چي قيمت وټاکل سو رامي ثاني به يې اول رامي ته ورکړي، ووجه الضمان ان الرامی الثانی تلف صيداً مملوكا للرامی الاول كما لو رمٰی شخص شاة شخص آخر وقتله وغاية الفرق ان فی صورة رمی الشاة يلزم علی الرامی ضمان الشاة الصحيحة وفی ما نحن فيه ضمان الصيد المجروحة.

قال المصنف رحمه الله ﴿ويجوز اصطياد ما يؤكل لحمه من الحيوان وما لا يؤكل﴾ او روا دي ښکار کول د هغه حيوان چي غوښي يې خوړل کېږي لکه د غره پسه يا هوسي وغيرهما، او د هغه حيوان ښکار هم روا دي چي غوښي يې نه خوړل کېږي لکه لېوه پړانګ وغيرهما ولي دا آيت واذا حللتم فاصطادوا عام دي او صيد هم په

ماكول اللحم پوري خاص نه دي ولي په غير ماكول اللحم سوي د غوښو ځخه نوري فائدي ستة لكه فائده په پوست سره د ګيدړي او د پړانګ كما مر، او يا په وېښتيانو سره كما مر ايضاً او يا په هډوكو سره د هغه كما في الفيل، او يه په ښكو سره لكه بابنه تپوس وغيرهما چي په ښكو يې خلګ بالبنستان ډكوي، او يا د پاره د دفعي د ضرر د هغه لكه په صورت كي د حملې پر سړي باندي، قال صاحب الهدايه وكل ذالك مشروع.

قال ﴿وذبيحة المسلم والكتابى حلال ولا يؤكل ذبيحة المرتد والمجوسى والوثنى والمحرم﴾

**توضيح مسئله**:- چي ذبيحه په دې عباراتو كي په معنا د مذبوحه ده او حلال كړه سوي حيوان ته وايي نو د مسلمان او اهل كتابو چي يهود او نصارى دي ذبيحه يې حلاله ده يعني هغه حيوان چي ماكول اللحم وي.

**توضيح مسئله**:- چي ذبحه شرط ده د هر ماكول اللحم حيوان د پاره لقوله تعالى الا ماذكيتم" يعني په دې آيت كي حرمت د عليكم الميتة والدم آه نو خداى ﷻ د محرم ځخه ماذكيتم استصناء كړې ده او استثناء د حرمت ځخه حل دي او ذبيحه د مسلمان چي حلاله ده لقوله تعالى ﴿الا ماذكيتم﴾ چي مخاطب مسلمانان دي، او د كتابي ذبيحه چي حلاله ده لقوله تعالى ﴿وطعام الذين اوتوا الكتاب حل لكم﴾ ولي چي مراد د طعام ځخه دلته حلال كړى شى دي د اهل كتابو ولي چي غير د مذبوحې ډوډۍ دال وغيره د هر كافر حلال دي مسلمان ته په اتفاق سره لكن شرط د حل د كتابي دادي چي په وخت كي د ذبح به يوازي نوم د خداى ﷻ پر

وايي كه څه هم ددوي په ژبه وي، نو كه چېري كتابي په وخت كي د ذبح يوازي د مسيح عليه السلام او يا د عزير عليه السلام او يا دا دوه نومان د خداى جل جلاله د نامه سره ملګري كړي په وخت كي د ذبحي نو ذبيحه يې مرداره ده اجماعاً.

په مستصفى كي وايي چي كه داسي نصراني و چي عيسى عليه السلام يې خداى جل جلاله بالى بيا ذبحه مرداره ده حكم د مجوسي لري.

**پوښتنه**:- بعض مسلمانان د عليه السلام د پاره يا د يو پير د پاره كه ژوندى وي او كه مړ يو حيوان ذبحه كوي آيا دا ذبحه حلاله ده او كه څرنګه چي وهابيان دا سړى مشرك بولي او ذبيحه يې مرداره بولي ؟

**ځواب**:- هر مسلمان الا ماشذ وندر په خوله تر ذبحي د مخه داسي وايي چي دا پسه مثلاً دعليه السلام مثلاً د روح د خوشحالي د پاره حلاله وم يعني چي ثواب دې ده ته ورسېږي او دده روح دي په خوشحاله سي وروسته چي حيوان د ذبح ځاى ته ورولي نو دى وايي بسم الله، الله اكبر فقط او چاړه يې پر غاړه ورتېره كړي او حلال يې كړي نو په داسي ذبيحه كي د حرمت ځاى كوم دي بلكه حلال مطلق دي، البته بعض جاهلان په پښتنو كي سته چي هغه په وخت كي د ذبحي د خداى جل جلاله د نامه سره بل نوم هم ملګري كوي د هغو ذبيحه مرداره ده شايد د وهابيانو به هم دغسي اشخاص مراد وي، او نه خوړل كېږي يعني مرداره ده ذبيحه د مرتد يعني چي د دين څخه د اسلام وتلى وي په هر دين چي سوى وي العياذ بالله ولي چي مرتد بل دين نه لري كه څه هم دى كتابيت ته تللى وي ولي چي هر هغه دين مرتد ته قرار نه وركول كېږي بلكه شريعت مبارك يې حكم د قتل كوي، او كه كتابي مثلاً

نصارا و دین ته د یهودیانو ورواوښتی شریعت پاك دي پر هغه پرېږدي کار دي نه په لري نو ذبیحه یې حلاله ده ولي اوس هم کتابي دي او داغه رنګه نه خوړل کیږي ذبیحه د مجوسي یعنې اور پرسته او نه د بت پرستانو چي په اصطلاح یې موږ هنداون بولو، او نه خوړل کېږي ذبیحه د محرم لکن په حق د ښکار نه د پسه مثلاً لان الصید المحرم غیر مشروع.

**پوهه نه**:- چي دا د حلال سړي ذبیحه په حق کي د صید الحرم هم داغه حکم لري چي غوښي یې نه خوړل کېږي کذا فی شروح الکنز.

**فائده**:- چي ذابح په ذبحه پوهېږي او په تسمیه اسم الله هم پوهېږي او یه یاد یې وي او په وخت د ذبحي یې ووایي که نر وي او که ښځه او که نابالغ وي ذبیحه یې حلاله ده، جوهره درویش.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان ترك الذابیح التسمیة عمداً فاذبیحة میتة لا یوکل وان ترکها ناسیاً اکل﴾ او که چېري پرېښول ذابیح نوم د خدای جل جلاله په وخت کي د ذبح په قصد سره نو ذبیحه مرداره ده نه خوړل کیږي او که یې په هېره پرېښول خوړل کېږي.

**فائده**:- د تسمیه مشهور او معمول صورت دادي" بسم الله والله اکبر، او امام حلواني رحمه الله وایي چي لفظ یې دادي بسم الله الله اکبر یعنې بغیر د واو څخه او که ذابح داسي وویله بسم الله الرحمن الرحیم فهو احسن.

**پوهه نه**:- چي شرط د تسمیه ذکر مجرد دي د خدای جل جلاله لکه چي د عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دي" جردوا التسمیة، حتی که یو

ذابيح په نيت د تسميه داسي وويله سبحان الله يا الحمد لله يا لااله الا الله هم كفايت كوي ولي چي دى مامور په ذكر الهي دي چي دال پر تعظيم دي، جوهره، نو كه يې سبحان الله په ځای كي د عجب وويل يايي الحمد لله د پاره د شكر ديو نعمت وويل بيا كفايت نه كوي درويش، قال الله تبارك وتعالى ولاتاكلوا ممالم يذكر اسم الله عليه وانه لفسق ورد فى حق التسمية على الذبيحة، او امام شافعي رحمه الله وايي چي متروك التسمية عمداً مردار نه دي" لقوله عليه السلام المسلم يذبح على اسم الله سمى او لم يسم، زموږ دليل آيت مذكوره دي او بل دليل دادي چي تر امام شافعي رحمه الله د مخه صحابه رضي الله عنهم او تابعين رحمهم الله ټول پردې باندي متفق وه چي متروك التسمية عمداً مردار دي، او په متروك التسمية ناسياً كي زموږ دليل دادي د رسول الله ﷺ څخه چا پوښتنه وكړه په بارد كي د هغه چا چي تسميه يې په وخت كي د ذبح هېره سي، نو ﷺ وفرمايل اسم الله تعالى على لسان كل مسلم.

**درويش وايي**:- چي شايد دغه هېره به محمل د هغه حديث وي چي امام شافعي رحمه الله دليل په ووايه په متروك التسمية عمداً كي، ويؤيده ما ورد فى الحديث النبوى ﷺ الصحيح رفع عن امتى الخطاء والنسيان.

**پوه سه**:- چي لاتوكل په متن كي تاكيد د لفظ د ميتة ده.

قال ﴿والذبح فى الحلق واللبة﴾ او ذبحه په حلق كي ده يعني د غير د اوښ او په لبت يعني لاندي تر حلق د اوښ د، نو كه يې په ذبح اختياري كي لوړ تر دغو دوو ځايو او يا كښته تر هغو حلال كړي نو حرامه ده لانه ذبح فى غير المذبح كذا فى الواقعات.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿والعروق التى تقطع فى الذكاة اربعة الحلقوم والمرى والودجان﴾ او هغه رګونه چي پرې کېده غواړي په حلالېدو کي دادي، حلقوم چي په پښتو کي يې کرغنکه بولي چي په هغه ساه کښل کېږي، او بل مري دي چي په پښتو کي سره غاړه ورته وايي د هغې په ذريعه طعام ومعدې ته ننوزي. او دوه د ودجانو په نامه يادېږي چي په پښتو يې ښارګونه بولي.

قال ﴿فان قطعها حل الاكل وان قطع اكثرها فكذالک عند ابى حنيفة رحمة الله عليه وقالا رحمهم الله لابد من قطع الحلقوم والمرى واحد الودجين﴾ او که يې ټوله مذکورد رګونه ورېرې کړه روا دي خوراك د مذبوحې يعني باجماع الامام الاعظم رحمة الله عليه والصاحبين، ولي چي کامل ذبحه په خپل محل کي وسوه، او که يې اکثره رګونه چي درې دي هر درې چي وي هم يې حکم حل الاکل دي ولي چي اکثره لره حکم د کل دي په نېز د امام اعظم رحمة الله عليه، او ياران وايي چي چاره نسته يعنې په قطعه کي د اکثر د قطع څخه د حلقوم او مري او يو د ودجينو څخه، دوي وايي چي حقيقت د حلقوم او فائده د هغې مخالف د حقيقت او فائدې څخه د مري مخالفه ده کما مر، فلا بد من قطعهما، او د ودجينو ماهيت او فائده يوه ده چي بهېدل د وينو دي فيكفي واحد منهما معها، او امام شافعي رحمة الله عليه وايي چي قطع د ودجينو شرط نه ده، او امام مالك رحمة الله عليه وايي چي قطع د ټولو شرط ده.

**فائده**:- په هدايه کي وايي چي مشهور په کتابو کي د احنافو داده چي دا مذکور په متن کي د قدوري قول د ابو يوسف رحمة الله عليه دي يوازي،

او امـام محمـد رحمه الله ورسـره ملګری کـوي روایـت د قـدوري دی فقـط کذافی مجمع الانهر.

**فـائـده**:- ودجـان دوه لویـان رګونه دي یو د غـاړي پر یوه طرف دي او بل پر بل طرف دي او حلقوم او مري په منځ کي ددوي دي.

قـال المصنف رحمه الله ﴿ویجـوز الذبح باللیطة والمروة وکل شیئ انهـر الـدم الاالسـن القـائم والظفیر القـائم﴾ او روا ده ذبح په پوست د نـل او پـه مـروه چـي سـپینه ډبره ده چـي پـه هغـه سره عرب پسونه وغیره حلالوي لکه چاړه.

**یوه سـه**:- چـي تخصیص د سپیني ډبري بناء پر عـادت دي ورنه توره ډبره چـي تېره وي هـم ذبحـه پـه روا ده در، او هغـه شی چـي وینه بهـولای سـي لکـه د لرګـي تېره تیره مګر نه ده روا ذبحه پـه غـاښ سره چـي پر خپل ځای کي ولاړ وي او نه پـه نوك چي پـه ګوته پوري وي.

**یوه سـه**:- چـي د قـید د قـائم فی السن والظفر کي فـائده داده چـي سن یـا ظفر چـي د ځایـه جـلا سـي او ویـنه پـه بهـدلـی سـي ذبح یې رَوَا ده ولا بـاس باکلـه، جوهـره، او امـام شـافعي رحمه الله وایـي چـي پـه سن او ظفر سره مطلقـا ذبـح نـه ده روا او مذبـوح یـې مـردار دي لقـولـه علـیـه السـلام لیس السـن والظفـر، قلـنـا هـو محمـول علی القـائم فـی موضعـه واما القـائم فلا یجوز به الذبح اجماعا.

قـال ﴿ویسـتحب ان یحـد الذابـح شفرة﴾ او مستحب ده چـي ذابح چاړه ښه تېره کړي لکن د مخه تر پرېږ استو د حیوان د پاره د استرحت د مذبـوح او پـه دي بـاره کـي حدیث مبارك هم موجود دي پـه روایت د اوس

بن شداد ﷺ چي بېله بخاري ټولو اصحابو ﷺ د کتب سته وو روايت کړي دي كذا فى نصف الرايه.

**فائده**:- مستحب ده چي حيوان مذبوح دي په ذېره نرمي سره پرې باسي او درې پښې دي فقط وروتړي او مخ دې د قبلې وخوا ته کړي، بعض جاهلان د پسه مخ د قبلې څخه واړوي او غاړه يې د قبلې وخوا ته کړي، او چابك چابك دي چاړه پر غاړه د مذبوح ورتېره کړي او دا مکروه دي مثلا چي پسه پرې باسي او وروسته چاړه تېره کوي لورود النهى عن ذالك فى الحديث النبويﷺ.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن بلغ السكين النخاخ او قطع الراس كره له ذالك وتوكل ذبيحته﴾ او كه ذابح چاړه ورسوله وحرام مغز ته د پسه مثلا او يا د ذبح په وخت کي سر څندي پرې کړي دا فعل د ذابح خو مکروه دي ولي خلاف د مشروع دي لكن ذبيحه يې مردار نه ده بلکه خوړل کېږي ولي په حديث شريف کي راغلي دي چي عليه السلام نهي وکړې ان تنخع الشاة وقت الذبح.

**فائده**:- داغه رنګه مکره ده چي د پسه سر ورو ېچي تاچي مذبح يې معلومه سي، او داغه رنګه مکروه ده چي د پسه مغزى ورماتوي د مخه تر ساه ختلو لکه بعض سنګك دله قصابان چي يې کوي ولي چي په دې ټولو کارو کي او داغه رنګه د سر په پرې کېدو کي تعذيب د حيوان مذبوح دي بېله فائدې وهو منهى عنه هكذا فى الهدايه، او غوشي چي يې خوړل کېږي لحصول المقصود وهو انهار الدم المسفوع فافهم درويش.

قـال:- ﴿وان ذبـح الشـاة مـن قفـاه فـان بقيـت حيـة حتّٰى قطـع العـروق جـاز ويكـره﴾ او كه يو چا حلال كړي پسه د څټ د خوا څخه نوكه دا پسه تر هغه وخته پوري ژوندى و چي رګونه يې پرې كېده ذبيحه يې روا ده ولي چي د پسه په ذبح شرعي سره چي قطع د رګو ده وسوه لكن داسي فعل د ذابح مكروه دي ولي چي ذبيحه خلاف السنت ده.

قال المصنف :- ﴿وان ماتـت قـبل قطـع العروق لم يؤكل﴾ او كه پسه مړ سو تر قطع د عـروقو د مخه نو نه خوړل كېږي ولي چي مرګ د پسه د مخه تر ذكات شرعي منځ ته راغلي كذا في الهدايه.

قال ﴿ومـا اسـتانس من الصيد فذكاته الذبح وما توحش من الـنعم فذكاته العقر والجرح﴾ او هغه صيد چي د انسانانو سره الفت پـيدا كـړي او وحشـي ګـرت يې ولاړ سي لكـه كورنـۍ هوسـۍ يـا كوتره وغېره نو د هغه حلالوالى ذبح ده. او هغه كورنۍ حيوان لكه اوښ غويي وغـيره چـي وحشـت وكـړي يعـنې د خلكـو څخـه څغلـي ځـان پـه لاس نـه وركـوي نـو د هغـه حلالى د عقر دي يعني پر پښو دې په توره ووهي او په جرحه ده يعنـي پـه غشـي دې وولـي ولـي پـه سبب د عـدم توحـش پـه اول صورت كـي ذبـح اختـياري ممكنه ده نو ذبحه اضطراري نه ده روا، او په سبب د وحشـي توب د حيوان اهلي ذبحه اختياري نسوه ممكنه نو ذبحه اضطراري يې په ځاى كي درېږي، هدايه درويش.

قـال ﴿والمسـتحب فـى الابـل الـنحر وان ذبحهـا جـاز ويكـره والمتسـحب فـى البقر والشـاة الذبح فان نحرهما جاز ويكره﴾ او مستحب ده په اوښ كي نحر چي په لبت كي يې حلالول دي، او كه

يې ذبح کړي يعني په حلق کې حلال کړي روا خو دی لکن دا فعل مکروه دي لکونه خلافا ماهو السنة او مستحب په غوايي او پسه وغيره کي ذبح ده او که يې په نحر حلال کړي روا خو دي لکن دا فعل مکروه دي لکونه مخالفا للسنة واشارة القرآن قال الله تعالى فصل لربك وانحر، وقد قيل فى تاويله وانحر الابل، و قال الله تعالى فى قصة ابراهيم واسمٰعيل عليهم السلام حين اراد ذبيحة وفديناه بذبح عظيم والمذبوح كان فى الواقع المذكورة الغنم، وقال الله فى قصة قتيل فى بنى اسرائيل فى حيوة موسٰى ﷺ ان الله يامركم ان تذبحوا بقرة، او بل دليل دادي چي په حلالېدو کي چي پر حيوان هر قسم حلالېده آسانه وه هغه مستحب دي، او اسانه د اوښ د پاره نحر دي او د غوايي او د پسه د پاره اسانه ذبحه ده، او بل دليل دادي چي د اوښ رګونه په منحر کي سره جمع دي او هلته غوښي هم نسته نو پرې کول د ټولو عروقو په منحر کي اسانه کار دي، او د غوايي او پسه عروق ټوله په حلق کي سره يو ځای دي نو د ټولو پرې کول په مذبح کي اسانه دي.

قال ﴿ومن نحر ناقة او ذبح بقرة او شاة فوجد فى بطنها جنينا ميتا لم يؤكل اشعر او لم يشعر﴾ او که چا حلاله کړه اوښه او يا غوا او يا مېږه نو په نس کي د هغې مذبوحې جونګی يا ګلګی او يا وری وو مړ د هغه جنين غوښي نه خوړل کېږي که وېښتيان باندي وي او که نه وي.

**فائده**:- دا مذهب د امام اعظم، امام زفر او امام حسن بن زياد رحمهم الله دي، دوي وايي چي جنين حيوان مستقل دي نو ذبحه مستقله غواړي، او ياران وايي که د جنين اعضاء پوره وه حلال دي يعني

خوړل کېږي لقوله عليه السلام ذكات الجنين ذكاة امه" وبه قالت الائمة الثلثة وزيادة تفصيل الدلائل والجوابات فى الهداية والجوهرة والبحر الرائق ان شئت فطالع تلک الشروح، درويش.

قال ﴿ولا يجوز اكل كل ذى ناب من السباع ولا كل ذى مخلب من الطيور﴾ او نه دي روا خوراك يعني د غوښو د هر غاښ لرونكو درنده ګانو يعني چي ژوندي شى په غاښو سره څري لکه زمری، پړانګ، لېوه تر چغال پوري او نه دي روا خوراك د غوښو د هر خاوند د منګلو د مرغان څخه لکه باز باښه څرخك وغيره.

**پوه سه**:- چي د مخلب د مرغه نوك لكه د انسان دي، په حديث شريف كي راغلي دي چي عليه السلام نهي وكړه د خوراك څخه د هر غاښ والاو د هر مخلب والا يعني د غوښو څخه يې.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا باس باكل غراب الزرع﴾ او باك نسته په خوراك كي د غوښو د غراب الزرع چي كاغه يې بولي ولي چي دا مرغه دانې خوري مرداري نه خوري، او د سباع الطير څخه هم نه دي كذا فى الهدايه، او داغه رنګه روا دي د ګېړكي د غوښو او د ملا چرګك د غوښو او د كوتري د غوښو او د چوغكي د غوښو ولي اغلب خورك ددغو مرغانو دانې او مېوې دي، جوهره.

قال ﴿ولا يؤكل الابقع الذى ياكل الجيف﴾ او نه خوړل كېږي غوښې د ابلك كارګه، په منتخب كي وايي چي ابقع تور او سپين رنګ لري چي په فارسي يې زاغ بيشه بولي هغه غراب چي مرداري غوښې خوري، توصيف مشعر بالتعليل كما لايخفى.

قال ﴿ويكره اكل الضبع والضب والحشرات كلها ﴾ او مكروه دي يعني تحريما خوراك د غوښو د كوړ او د سمساري او د ټولو حشراتو غوښي لكه مار لړم وغيره.

**پوه سه**:- چي كوړ خو د سباعو څخه دي يعني درنده دي، او د سمسارۍ په باره كي ډېر لوي اختلاف په احاديثو شريفه وو كي موجود دي نو د بخاري شريف او نورو كتابو او د هغو د شرحو او حواشيو مطالعه بايد وكړه سي تاچي ناسخ او منسوخ د حديثو مباركو ورمعلوم سي، زموږ د احنافو په نېز غوښي د سمسارۍ مرداري دي، دروېش.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا يجوز اكل لحوم الحُمر الاهلية والبغال﴾ او نه دي روا خوراك د كورني خرو د غوښو او نه د غاترو د غوښو.

**پوه سه**:- چي د اهليت په قيد سره يې د غره پسونه ويستل چي په شكل د اهلي خرو دي او ګوره خره يې بولي ولي د هغو د غوښو خوړل روا دي، په حديث كي د بخاري او مسلم د علي رضي الله عنه په روايت كي راغلي دي چي عليه السلام نهي وكړې د متعه يعني موقته نكاح چي ايرانيان يې صيغه بولي، څخه د ښځو په ورځ د خيبر او د خوراك څخه د غوښو د اهلي خرو، او په حديث كي د ابن ماجه چي د خالد بن وليد رضي الله عنه څخه روايت دي چي عليه السلام نهي وكړې د خوراك څخه د اسانو، د غاترو، او د خرو د غوښو.

قال ﴿ويكره اكل لحم الفرس عند ابى حنيفة رحمه الله ﴾ او مكروه دي خوراك د غوښو د آس په نېز د امام اعظم رحمه الله وهو قول مالك، او

امام ابو یوسف، امام محمد، او امام شافعي رحمهم الله وايي چي په خوړلو کي د خوښو د آس هيڅ پروا نسته، ويفهم من مضون متون الفقه ترجيح مذهب الامام الاعظم رحمه الله.

**درويش وايي**:- چي ددې دواړو قولو تفصيل په هدايه کي دې مطالعه يې کړي.

**فائده**:- په دې کي اختلاف دي چي د امام اعظم رحمه الله په نيز خوړل د غوښو د آس مکروه تحريمي او که تنزهي دي، هدايه والا وايي چي کراهت تحريم اصح دي، په عنايه کي وايي چي امام ابو یوسف رحمه الله د امام اعظم رحمه الله څخه پوښتنه وکړه چي تاسو چي په يو شي کي لفظ د کراهت مطلق مستعمل کړي ستاسي مراد څه دي؟ قال الامام الاعظم رحمه الله کراهة التحريم، او د عبد الرحيم کرماني رحمه الله څخه حکايت دي دی وايي چي زه متردد وم په دې مسئله کي چي د امام اعظم رحمه الله به کوم کراهت مراد وي، نو ما ابو حنيفه رحمه الله په خوب ولېدی چي داسي يې راته وويل کراهة التحريم يا عبد الرحيم، مجمع الانهر، او امام اسبيجابي رحمه الله وايي چي صحيح دادي چي مکروه تنزهي دي، او محمود بن الياس رحمه الله په شرح کي د نقايه وايي چي کراهة التنزهي ظاهر الرواية دي، او په مجع الانهر کي وايي وهو الصحيح، او فخر الاسلام رحمه الله پر دغه کراهت ننزيه دي.

**درويش وايي**:- چي په افغانستان او پاکستان کي داسي معلومېږي چي قديم علماء ددغو دوو ديارو کرهت التحريم په ميراث پرې اېښي دي، ولي چي هيڅ ځاى د دغو دوو ديارو د آس غوښي څوك

نه خوري كه څه هم ډېر مسكين وي په استثناء د بعض شمالي علاقو د افغانستان على ما سمعت من طلباء الديار المذكورة والله اعلم بالصواب.

قال ﴿ولا باس باكل الارنب﴾ او پروا نسته په خوړلو كي د غوښو د سوي، ولي چي په روايت كي د نسائى د ابو هريره ﷺ څخه داسي راغلي دي چي يو صحرايي سړي سوي پوخ كړه سوى و عليه السلام ته روا ړي او دده ﷺ په خدمت كي يې كښېښوى، عليه السلام خو پخپله د خوراك څخه ډډه وكړه او حاضرينو ته يې وويل وېخوري.

**درويش وايي**:- چي ممكنه ده چي ﷺ به په مكه مكرمه كي د سوي غوښي نه وې ليدلي او نه خوړلي او دا طبعي خبره ده چي يو سړى چي په خپل طول عمر كي د يو حيوان غوښي نه وي خوړي طبعه يې نفرت ځندي كوي، او كه مرداري واى نو ولي ﷺ ونورو خلكو ته امر د خوړلو وركاوه، او د پښتنو په علاقو كي هم د سوي غوښي لږ خلك خوري لكن عدم حرمت او كراهت يې اجماعا ثابت دي.

قال المصنف رحمه الله ﴿واذا ذبح ما لا يؤكل لحمه طهر جلده ولحمه الا الخنزير والآدمى فان الذكات لاتعمل فيهما﴾ او كه ذبح سو هغه حيوان چي غوښي يې نه خوړل كېږي نو پاك سو پوست د هغه حيوان او غوښي يې هم پاكي سوې مثلاً خر يا لېوه وغيره يې ذبح كړي نو پوست او غوښي يې پاكي دي.

**پوښتنه**:- د غوښو د پاكوالي معنا څه ده؟

**ځواب**:- دا معنا نه ده چي خوړل کېږي بلکه معنا داده که د سړي سره ورسره وي لونځ ورسره روا دي.

**پوښتنه**:- په ذبحه کي ددغسي حيوان تسميه غواړي تاچي غوښي او پوست يې پاکي سي او که مطلقا ذبح کافي ده؟

**ځواب**:- په جوهره کي وايي چي تسميه شرط ده ولي که دغه حيوان مجوسي ذبح کړي غوښي او پوست يې نه پاکېږي.

**پوښتنه**:- چي دغه غوښي او پوست چي په لږو ابو کي ولوېږي نه يې مرداروي او داغه رنګه يې وازګي هم پاکي دي.

**پوښتنه**:- آيا نفع په وازګه کي ببله خورکه روا ده او که څرنګه؟

**ځواب**:- اکثر علماء پر دې دي چي نفعه نه ده په روا اعتباراً بالاكل، او بعض فقهاء وايي چي نفعه اخيستل پر روا دي، وفی روايت عن ابی حنيفة رحمه الله چي پوست يې په ذبح پاکېږي او غوښي يې نه پاکېږي قيل هو الصحيح لکن ظاهر الرواية هغه دي چي په متن کي ذکر سو يعني چي دواړه پاك دي، درويش. مګر نه د سرکوزي غوښي او پوست چي هغه په ذبح سره نه پاکېږي لانه نجس العين، داغه رنګه د انسان دا هم په ذبح سره نه پاکېږي لکرامته، قال عز من قائل، ولقد كرمنا بنی آدم" مصنف رحمه الله وايي زکات يعني په دغه دوو کي تاثير نه لري.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا يؤكل من حيوان الماء الا السمك ويكره اكل الطانی منه﴾ او نه خوړل کېږي د حيواناتو څخه د اوبو لکه چونګښه، ختکښ، چنګاښ وغيرها من الانواع الكثيرة التی تعيش فی الماء، مګر دماهي غوښي خوړل کېږي، دا زموږ مذهب دي، او امام

مالك رحمه الله وايي چي د ټولو مافي البحر غوښي حلالي دي، الا ما على صورة الخنزير او الكلب، او د امام شافعي رحمه الله څخه روايت دي چي دا مذكور دوه هم حلال دي، والتفصيل الدلائل فى الشروح المطولة او د طافي ماهي خوراك مكروه دي.

**پوره نښه**:- چي طافي هغه ماهي بولي چي په اوبو كي په خدايي مرګ مړوي او اوبو پر سر راختستى وي هغه مردار دي.

**فائده**:- كه درياب ځپه ووهل او ژوندي ماهيان په ځپه كي راغله او د اوبو ځپه ځندي ولاړه ماهيان پر مځكه پاته سوه او مړه سوه د هغه خوراك حلال دي، لقوله عليه السلام م ما الخسر منه الماء فكل.

قال ﴿ولا باس باكل الجريث والمار ماهى ويجوز اكل الجرادة ولا ذكات له﴾ او پروا نسته په خوراك سره د جريث چي يو قسم د ماهي دي، ماسوا د مشهورو ماهيانو څخه، او نه د مار ماهي.

**پوره نښه**:- چي مار ماهي بله نوعه د ماهيانو ده چي چي په صورت د مار مشهور د مځكي دي او غير د جرث څخه هم دي.

**درويش وايي**:- چي ددې دوو ماهيانو فرق د نورو ماهيانو څخه، او خودي ددوي دوو تر منځ فرق په صور كي دي، په منجد اللغت كي چي د ټولو حيواناتو وغيرها نقشې او صور پكښي موجود دي وګوره د خولې په بيان حقيقة الامر نه معلومېږي والله العلم بالصواب، او روا دي خوړل د مچخو او ذبح كول نسته پكښي، لقوله عليه السلام احلت لنا ميتتان ودمان فالميتتان السمك والجراد والدمان الكبد والطحال.

**بيت**

احب الصالحين ولست منهم
لعل الله يرزقني صلاحا

**ابيات**

مگر صاحب دلي روزي زحمت
كند در حق اين مسكين دعاى
غرض نقشيست كزما ياد ماند
كه هستي را نه ميبنم بقائى
چشم بد انديش كه هر كنده باد
عيب نمايد هنرش در نظر

پند ونصيت براى طالبان،
از زبان شرين خواجه عبد الله انصاري الهروي رحمه الله.

مكن كه آه فقيري شبي برون تازد
فغان وناله بعرش وملائك اندازد

زتير آه يتيمان اگر نمي ترسي
زسوز سينه نالان.كه ناوك اندازد

عذر همي كن كه ناله سحر گاهي
كه گر بكوه زند روزني در او سازد

بوقت نيم شبي گر بگوئي اللهي
هزار همچو تو از خانمان بر اندازد

هزار جوشن فولاد اگر بپوشي تو
زاه گرم فقيري چوموم بگدازد

متاز برسر مظلوم ساكت اي ظالم

که دسته فتنه ایام برسرت تازد

درون سینه مجروح بینوا مخراش
بدانکه روز جزا باتو نیز پردازد

اگر مجال نکند سائل ستم دیده
جزا دهنده ترا در جهنم اندازد

زجورهای لئیمان منال عبد الله
که گر خسي بزند کردگار بنوازد

عبید الله زظالمان محل تو هم منال
که مکافات از انها خدای ﷻ تو پردازد

دشمنان ما دران نکر که باماچه بکنند
وما درآن فکرم که خدای ﷻ ما با ایشان چو خواهد کرد.



# ﴿كتاب الاضحيه﴾

دا كتاب دى په بيان كي د احكامو د اضحيه

**پوهېدنه**:- چي چونكه ذبائح عام وه تر اضحيه نو ځكه مصنف رحمة الله عليه دمخه كړي ولي چي عام اعرف وي تر خاص او وروسته يې باب د اضحيه پسي راوړى، او اضحيه په شرعه كي د هغه خاص حيوان نوم دي چي په نيت د ثواب په مخصوص وخت كي ذبحه سي، او شرطونه د اضحيې دادي (۱) اسلام دى دوهم (۲) غنٰى ده په دونه اندازه چي پر سړي صدقة الفطر لازمېږي. كما مر نو پر ښځو باندې هم كېږي (۳) او وقت ايام د نحر دي او په دنيا كې له واجبه څخه خلاصېږي او په آخرت كې خداى جل جلاله ثواب وركوي. كذا فى مجمع الانهر باختصار، درويش

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿الاضحية واجبة﴾ اضحيه واجبه ده او له امام ابو يوسف څخه روايت دى، چي سُنت موقده ده. وهو قول الشافعي رحمة الله عليه و احمد امام فقيه محدث ابو جعفر طحاوى وايي چي اضحيه واجبه ده پر مذهب د امام اعظم رحمة الله عليه او سُنت ده په نزد د يارانو دليل د وجوب يې دا دى، چي په حديث شريف كې راغلي دي، من وجد سعة ولم يضح فلا يقربن مصلنا و مثل هذالوعيد لايكون الابطرق الواجب وباقي التفصيل فى الشروح.

﴿على كل حر﴾ نو پر مريي نه ده واجبه لعدم اليسار له لان ما فى يده ملك المولى ﴿مسلم﴾ نو پر كافر نسته لعدم اهلية للقربات

الشرعية ﴿مقيم﴾ كه مقيم په ښار كې وي او كه په قريه كې وي او كه په صحراء كې وي لكه مالداران، نقل عن علي ﷺ ليس على المسافر جمعة ولا اضحية، او كه حاجي په ايامو كې د حج نيت د اقامت نه وكړي اضحيه نه ده پر واجبه، او امام مالك رحمة الله عليه يې اقامت شرط نه بولي.

﴿موسر﴾ نو چې غنی وي ولې چې هر عبادت په قدر د قدرت دي او قدرت د اضحيه يسار او غنی ده نو ځكه پر مسكين اضحيه نشته.

﴿في يوم الاضحٰی﴾ په ورځ كې د لوي اختر ولې چې دا ورځ اصل د وجوب ده كه څه هم په نورو ورځو كې روا ده كما سياتي.

﴿يذبح عن نفسه وعن ولده الصغير﴾ ذبحه كوي به يې د ځان له لخوا څخه او د خپل صغير اولاد د خوا كه نر وي او كه ښځې يعني د هر ولد جلا جلا اضحيه پر واجبه ده، دليل يې دادي چې اضحيه خو قربت مالي دي لكه صدقه فطر په مخصوص وخت كې نو لكه صدقه فطر چې د صغير اولاد له خوا واجبه ده نو اضحيه هم د ولد صغير له خوا لازمه ده.

**پوهه نسبه**:- چې دا روايت هم د حسن بن زياد دي د امام اعظم رحمة الله عليه څخه او د امام اعظم رحمة الله عليه دا روايت هم راغلي دي چې اضحيه نه د ولد صغير او نه ده كبير پر پلار واجبه ده چې اولاد خپل مال نه ولري، او كه مال ولري نو پر كبير پخپله واجبه ده او پر صغير هم واجبه ده لكن نيابة يې پر پلار واجبه ده في ظاهر الرواية، وفي قاضيخان، الفتوی علی ظاهر الرواية.

**درويشي وايي**:- چي چونکه د مسلمانانو په دنياوي چارو کي تخفيف خوښ دي نوځکه د متن په عبارت سره نه عوام او نه خواص عمل کوي که څه هم په لکو او کروړو دنيا لري، او د سر سايې مقدار چونکه لږ دي نو ځکه مسلمانان د کوچنيانو سر سايه هم ورکوي.

قال المصنف رحمه الله ﴿ويذبح عن كل واحد منهم شاة او يذبح بدنة او بقرة عن سبعة﴾ نو غني پلار به ذبح کوي د هر ولد د خوا څخه شاة.

**پوهه پسه**:- چي شاة اسم عام دي مېږه پسه وزګړی بوزې ټولو ته شامل دي. او يا به ذبح کوي اوښ يا اوښه يا غويي يا غوا د اوو (۷) کسانو په ځای کي، د جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت دي نحرنا مع الرسول الله ﷺ يعني في زمانه البقرة عن سبعة والبدنة عن سبعة.

**مسئله**:- اوښ يا غويي د پنځو او د شپږو او د درو کسانو د خوا چي د ټولو نيت د قربت وي که واجب وي او که نفلي وي يعني صرف د غوښو نيت يې نه وي هم روا دي ولې چي د اوو کسانو څخه روا سو او د کمو کسانو څخه بطريق اولا روا دي، او د اتو يا بالا څخه نه دي روا، هدايه، مع زياده وحذف.

**فائده**:- په حديث صحيح کي راغلي دي چي يو سړي پوښتنه وکړه د عليه الصلوٰة والسلام څخه ما هٰذه الضحايا؟ يعني د څه سببه پر موږ دا اضحيه لازمه ده آنحضرت ﷺ ځواب ورکړي سنة ابيكم ابراهيم عليه السلام يعني دا طريقه د ابراهيم عليه السلام ده.

**درويش وايي**:- چي عليه الصلوٰة والسلام په دې جواب کي اشاره وکړه وهغه قرآني قصې ته چي ابرهيم ؑ څه وخت د خوب د لاري په ذبح د خپل زوي اسمٰعيل يا اسحٰق على اختلاف المفسرين رحمة الله عليه فيها مامورسو، نو پس له دې څخه چي په مکرر ډول خوب لېدو څخه ابراهيم ؑ ته دا يقين سو چي دا خوب وحى من عند الله دي او وذبح ته د زوي په منٰى کي اماده سو نوېې زوي ته داسي وويل ﴿يا بنى انى ارىٰ فى المنام انى اذبحك﴾ زوي يې ورته وويل ﴿يا ابى افعل ماتؤمر ستجدنى انشاء الله من الصابرين﴾ الى اخر الآيت.

**درويش وايي**:- چي چونکه ددې قصې اختلاف او بيان په کتابو کي د تفاسيرو او د احاديثو نبويه وو موجود دي او دا قصه په عين حال کي ښخي اوږده ده، او دا شرح د قدوري د فقي شريفي کتاب دي چي احکام پکښي بيانېږي نه قصص نو ددې سببه درويش عنان د بيان ددغي مبارکي قصې د تفصيل څخه وبيان ته د احکامو راوګرځولى، البته حسب ارادت الفقير که فقير ته خداى ﷻ توفيق ورکړي د تفسير القرآن د تفسير نو په هغه تفسير کي به د خپل ځايه سره موافق دا مبارکه قصه په تفصيل سره بيان کړم ان شاء الله تعالى وارجوا من عظيم قدرته تعالى ان يوفقنى لتصنيف التفسير المذکور انه تعالى على مايشاء قدير، او په نيت کي د فقير داده چي څه وخت د نکاح قدوري شرحه پوره کړم زه به سمدستي ان شاء الله تعالى شروع په تفسير مذکور کوم، اللهم انى وان لم اکن اهلا لتفسير کلام الله لکن ليس ذالك من قدرتك واحسانك ببعيد، تضرع واظهار عجز ودعاء المرام المذکور.

پاکه خدایه شائقان په انتظار دي د تفسیر
دغه شوق د دوي پوره کړې یا قدیر

د تفسیر اعلان دي سوي ډېر پخوا
تر دا اوسه ځنډولی ستا تقدیر

تقادیر ستا چونکه پټ دي له مخلوقه
نه پوهېږم څه حکمت دي په تاخیر کي د تفسیر

یا قدیر یا قادره دا مرام زما پوره کړې
بېله دې بل ارمان نستقه د فقیر

ادعوني استجب لکم ستا ارشاد دي
د فقیر دعا دا اوس ده د تفسیر

د ژوند ټوله ارمانونه مي پوره سوه
دغه یو پاته ارمان راپوره کې د تفسیر

**پوښتنه**:- تفسیر د قرآن مجید په عربي په فارسي په اردو په پښتو حتی په انګریزي ژبو کي ښځي ډېر تفسیرونه لري، نو څه ضرورت پاته دي ستا ددغه تفسیر په پښتو ژبه کي ؟

**ځواب**:- نعم خدای ﷻ دي د ټولو مفسرینو په هره ژبه چي یې تفسیر د قرآن مجید کړی وي دا سعي مقبوله وګرځوي او دوي ته دي خدای ﷻ اجر عظیم ورکړي لکن مع هذا چونکه د پښتو ژبه ډېر تفاوت سره لري حتی بعض پښتانه د بعضو پښتنو په ژبه لکه نه چي پوهېږي زموږ د هیواد افغانستان د ډېرو برخو ژبه لکه قندهار، تیری او دراوت او فرا نیم روز وغیره بلکه د اکثرو پښتنو د پاکستانیانو ژبه د نورو ژبو څخه

ډېره مخالفه ده، نو درويش ته دا ضرورت محسوس سو چي د مذكوره ولايتو او د نورو ورته ولايتو د ژبي سره موافق تفسير تصنيف كړي تاچي دا برخه پښتانه هم د قرآن د تفسير او ترجمې څخه بې برخې پاته نه سي. او هر سړی چي ليك او لوست يې زده وي كه نر وي او كه ښځي دا تفسير شريف د هغې كورنۍ استاذ وګرځي،لكه چي قدوري جلد اول او دوه د نكاح جلدونه او د نور الايضاح دري جلده وهكذا شروط الصلوت او دوه جلده كنز په فقه شريفه كي او نور ظلم او د ابو المنتهى شرح او نوري رسالې چي په عقائدو كي د پښتنو ورنړو او خوندو دپاره چي په نوموړو علمونو كي كورني استاذان جوړ سوي دي والله الموفق والمعين.

قال المصنف رحمه الله ﴿وليس على الفقير والمسافر اضحية﴾ او نسته پر فقير او مسافر اضحيه ولي چي په وجوب كي د اضحيې كما مر آنفاً يسار او غنى شرط ده او بل اقامت شرط دي چي هغه په فقير او مسافر كي نسته فالمشروط ايضاً ساقط عنها.

قال ﴿ويدخل وقت الاضحية بطلوع الفجر من يوم النحر الا انه لا يجوز لاهل الامصار الذبح حتى يصلى الامام صلوة العيد فاما اهل السواد فيذبحون بعد طلوع الفجر يعني من يوم العيد﴾ او داخلېږي وقت د اضحيې په راختلو سره د سپېدو د لوي اختر د ورځي، مګر نه ده روا د ښارو خلكو ته د اضحيې ذبح كول تر هغو پوري چي امام د عيدګاه د اختر لمونځ نه وي كړی ولي چي په حديث شريف كي چي روايت يې امام بخاري رحمه الله پخپل صحيح كتاب

كي او امام مسلم رحمه الله پخپل صحيح كتاب كي د براء بن عازب رضي الله عنه څخه كړي دي داسي راغلي دى رضي الله عنه وايي چي زما ماما ابوهريره رضي الله عنه د مخه تر لمانځه د عيدگاه ذبح كړې وه نو ده د عليه الصلوة والسلام څخه په دې باب كي پوښتنه وكړه نو عليه الصلوة والسلام ورته وويل تلك شاة محم يعني دا اضحيه نه ده نو زما ماما ورته وويل چي زما سره يو سېرلى سته يعنې چي كال يې نه دي پوره عليه الصلوة والسلام ورته وويل ضح بها ته هغه اضحيه كړه ولا تصلح لغيرك، او ورته سېرلى په اضحيه كي بل چا ته نه دي روا ، او وروسته آنحضرت صلى الله عليه وسلم وفرمايله چا چي اضحيه وكړه د مخه تر لمانځه يعنې د عيدگاه فانما ذبح لنفسه" هغه يې د ځان لپاره ذبح كړې ده يعنې اضحيه نه ده او كه چا وروسته تر لمانځه ذبح وكړه تم نسكه واصاب سنة المسلمين ن وعبادت يې پوره سو او وطريقې ته د مسلمانانو ورسېدى، نو ددې حديث څخه صراحةً دا معلومه سوه چي دا حكم په باره كي د هغه چا دي چي پر هغه د عيدگاه لمونځ واجب وي نوددې سببه مصنف رحمه الله وايي چي اهل القرىٰ، او اطرافيانو ته روا ده ذبح د اختري پس له سپېدو څخه د عيد د ورځي.

**تبصره**:- چونكه په اوسنى زمانه كي عوام الناس او سرمايه داران خصوصاً د پښتنو مسجدنو جوړوي د پاره د ريا او د سمعې كه څه هم دا مسجد يې پر ضد او عداوت د بل جامع مسجد وي چي مسجد ضرار يې بولي چي د باني قصد تفريق اچول وي په منځ كي د لمونځ كونكو د قديم جامع مسجد ، نو كه هم دا نوي مسجد د جامع مسجد قديم څخه پنځوس گامه لېري هم نه وي او كه څه هم پنځوس كسه لمونځ كونكي

بلکه شل کسه لمونځ په صلوات خمسه وو کي نه لري نو د اباني د نوي مسجد د مخه تر تکميل د مسجد امر د جامع مسجد او عيدګاه د خپل مسجد د پاره واخلي، هغه آمر هم دومره احساس نه لري چي ورته ووايي چي دومره نژدې وجامع مسجد ته د جمعې او عيدګاه لمونځ کله روا دي بلکه پنځه سوه يا زر روپۍ تر لاسه کړي او د جمعې د لمانځه او د عيدګاه امر ورکړي، نو ددې کبله په کوټه کي ډېر لږ او ښخي لږ داسي مسجدان سته چي د جمعې لمونځ دي نه پکښي کېږي او سره ددې چي د قندهار په لوي ښار کي ښېله عذره د باران وغيره يو ځاى د عيدګاه لمونځ کېدى، خير دا خو د سرمايدارانو د ريا حال و، لکن اوس مسئله دا پيدا کېږي چي سړى چي ذبحه د اضحيه کوي د کومي عيدګاه تر لمانځه وروسته به يې کوي؟ صحيح دا ده چي په هره عيدګاه کي چي ذابح لمونځ وکړي بيا ذبح د اختري ورته روا ده لکن احتياط پکار دي چي ذابح دي کوشش کوي چي هر ځو چي قديم عيدګاه وي په هغه کي دي د اختر لمونځ وکړي او بيا دي اضحيه ذبح کړي.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿وهى جائزة فى ثلثة ايام يوم النحر ويومان بعده﴾ او اضحيه رواده په درو ورځو کي، يوه ورځ د لوي اختر ده او دوې ورځي وروسته تر هغې، ولي چي په روايت کي د حضرت عمر، حضرت علي او د حضرت عباس رضي الله عنهم راغلي دي دوي وايي چي ورځي د نحر درې دي او افضله يې اوله ورځ ده او دا معلومه خبره ده چي اصحاب رضي الله عنهم دا خبره د خپلي رايه څخه نه کوي بلکه دې اصحابو رضي الله عنهم دا تعين د رسول الله ﷺ څخه اورېدلى دي لان العلماء والفقهاء رحمهم الله

قالوا لامدخل للراى فى تعين المقادير الشرعية، او امام شافعي رحمه الله
وايي چي ورځي د ذبح ځلور دي لقوله عليه السلام ايام التشريق كلها
ايام ذبح" په مجمع الانهر كي وايي چي څه وخت چي په احاديثو كي
تعارض راسي نو عمل په متيقن سره افضل دي چي درې ورځي دي.
مسئله:- كې د دريمي ورځي تر غروب الشمس د مخه اضحيه ذبح
كړه رواده.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا يضحى بالعمياء والاعور او العرجاء
التى لاتمشى الى المنسك و لا العجفاء﴾ او اضحيه به نه كوي په
ړانده حيوان سره، او داغه رانګه په يك چشمه حيوان سره او په ګوډ
حيوان سره چي تر ځايه پوري د ذبح نه سي تلاى، او نه په ډېر ډنګر
حيوان سره او هغه ډنګر حيوان نه دي روا چي په هډوكو كي يې ماغزه نه
وي او دا په دې سره معلومېږي چي هر څو چي دا حيوان ته ډېر علف
واښه وغيره ورواچوې نه چاغېږي كذا قالوا. قال صاحب الهدايه چي
قانون د جواز د اضحيې او د نه جواز دادي چي ډېر عيب د حيوان مانع
د جواز دي او لږ عيب مانع نه دى ولي چي حيوان غالباً د لږ عيبه خالي
نه وي او لږ عيب دادي چي د حيوان پر غوښو تاثير ونه لري، او عور
يعني په يوه ستركه نه لېدل تاثير پر غوښو لري ولي دا ړوند حيوان په
يوه ستركه واښه ويني او په يوه يې نه ويني نو خوا ماخوا ډنګرېږي، او
عميا خو ظاهره ده او داغه رنګه عرجا مذكور او عجفاء مذكور فتدبر.

قال ﴿ولاتجزء مقطوعة الاذن والذنب﴾ او كافي نه ده په اضحيه
كي هغه حيوان چي غوږ يې پرې وي او نه هغه حيوان چي لكۍ يې پرې

وي، د غوږ په باره کي هغه حديث د عليه السلام دي، استشرفوا العين والاذن" يعني تاسي طلب د سلامتيا کوي د سترګي او د غوږ د اضحيې او لکۍ چونکه جلا عضو مستقل ده او مقصود هم ده نو لکه غوږ داسي ده كذا فى الهدايه.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولاالتى ذهب اكثر اذنها او ذنبها وان بقى الاكثر من الذنب والاذن جاز﴾ او نه ده روا په اضحيه کي هغه حيوان چي اکثره حصه يې د غوږ يا د لکۍ پرې سوې وي، او كه يې اکثره حصه د دغو دوو اندامو پاته وه بيا روا ده لان للاكثر حكم الكل په بقاء کي او په تګ کي.

پوهېدنه:- چي په مقدار کي د اکثر ډېر اختلافات دي چي په هدايه کي مذكور دي هورې دي مطالعه کړه سي.

قال ﴿ويجوز ان يضحى بالجماء والخصى والجرباء والثولاء﴾ او روا ده اضحيه په جماء حيوان سره يعني چي خلقةً ښکر نه لري چي په پښتو کي کلى بولي، ولي چي ښکر په اضحيه کي دخل نه لري ولي اوښ چي ښکر نه لري په اضحيه کي روا دي نو بناءً عليه چي ښکر يې مات وي هم روا ده، او داغه رنګه روا ده په خصي حيوان سره بلكه د امام اعظم رحمه الله څخه روايت دي چي خصي تر مينده اولى دي لان لحمه اطيب والذ وكذا فى مجمع الانهر، او ګرګ حيوان هم روا دي چي جربا يې بولي.

**پوه سه**:- چي جربا که چاغه وه خو په اضحیه کي روا ده ولي ګرګ خالص په پوست کي دي او غوښو ته يې هيڅ تاوان نه دي رسولی او که ډنګره وه بیا په اضحیه کي نه ده روا ولي جرب يې غوښو ته داخل سوي نو ځکه ډنګر سوي دي کذا فی الهدایه، او داغه رنګه روا ده ثولاء یعني لېونی حیوان لکن دا هلته روا دي چي واښه خوري او که داسي لېونی و چي واښه يې نه خوړل هغه نه دي روا هدایه.

**فائده**:- پوه سه چي په کتابو کي د احادثو مبارکوو په روایت د ابو هریره ﷺ د آنحضرت ﷺ د اضحيې داسي حکایت کړی دی، ان الرسول الله ﷺ کان اذا اراد ان یضحی اشترٰی کبشین یعني دوه نر پسونه عظیمین ښه غټ سمینین ښه چاغ اقرنین ښکرور املحین تور او سپین موجوئین خصي.

**پوه سه**:- چي وجاء يوه نوعه د خصي والي ده اصل خصي په عرف کي دادي چي مثلا د پسه خوټي ځندي وکاږي او وجاء داده چي په اوسنی زمانه کي رواج ده چي مثلا د پسه تر خوټو لوړ لکه امبر داسي یوه آله یا لکه پلاس د پسه خوټو ته ورواچوي او کېنې يې کاږي چي هغه خوټو ته راغلي رګونه يې پرې سي نو بیا که د پسه خوټي هم وي مندويي نسي کولای کما هو التجربه، په افغانستان کي د يو دوو ډلو سره اختلاف و نو د يوې ډلي مشر چي نوم اخسته يې مناسب نه دي ولي چي مشهوره سړی دي، د هغه بلي ډلي يو نفر چي به په لاس ورغلي د وجاء په خصي کولو سره به يې خصي کړي چي تول ژوند به يې د هغه ورعبث

کړېيعني د عيال څخه به يې وه يستي العياذ بالله من هٰذا الظلم الذى لم يوجد فى بنى نوع الانسان قبل ذالك.

قال ﴿والاضحية من الابل والبقر والغنم ويجزئ من ذالك كله الثنى فصاعدا الا الضان فان الجزع منه يجزء﴾ او اضحيه ددغو درو نوعو حيواناتو څخه رواده چي د اوښ نوعه ده كه نر وي او كه ښځه، او د غوايي نوعه ده كه نروي او كه ښځه، او د غنم نوعه چي د ميږي صنف او د بوزې دواړو ته شامله ده، وجه الحصر فى هٰذه الثلاثة ان الاضحية عرفت شرعاً ولم تنقل التضحية بغيرها كالحيوان الوحشى مثلا من النبى ﷺ ولا من الصحابة ﷺ كذا فى الهدايه، او كفايت كوي په اضحيه كي په درو سره نوعو كي ثنى ددوي يا بالاتر ثنى مګر د پسو د ضف څخه غير چي د هغه ضف جذع هم كافي دي.

**پوهنه**:- چي جذع و ضان په نيز د فقهاء هغه دي چي شپږمياشتي پر تېري سوي وي، اوثنى د ضان او د بوزي د ضف هغه دي چي يو كال پر ډېر سوي وي، او د بقرې د نوعې ثنى هغه دي چي دوه كاله عمر يې پوره كړى وي، او داوښ د نوعي ثنى هغه دي چي پنځه كاله يې پوره كړي وي.

**فائده**:- ګاه مېښه په غوايي كي داخله ده.

**فائده**:- مصنف رحمة الله عليه مطلق جذع كافي وباله لكن بعض فقهاء وايي چي هغه جذع كافى دي چي په بدن دومره غټ وي چي د يو كلني وريو

سره وي ځوك يې د لېري ځخه په فرق نه پوهېږي و الصواب الاطلاق كما هو الظاهر المتون، والله اعلم، درويش.

ورد فى الحديث النبوى ﷺ الذى رواه مسلم رحمة الله عليه عن جابر رضي الله عنه چي عليه الصلوة والسلام وويل ضحوا بالثنايا الا ان يعسر على احدكم فليذبح الجذع من الضان.

**درویش وايي:**- چي د حديث نبوي ﷺ مطلق ويل د جذع تائد كوي د اطلاق د متن.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿وياكل من لحم الاضحية ويطعم الاغنياء والفقراء ويدخر ويستحب له ان لا ينقص الصدقة من الثلث﴾

او خوراك دي كوي د اضحيه كونكي د اضحيې د غوښو ځخه او صدقه كوي دې پر اغنياؤ او فقراؤ او ذخيره كوي دې او مستحب ده چي نه دي كموي صدقه د غوښو تر دريمي حصې.

**پوښتنه:**- چي په حديث شريف كي راغلي دي چي يو كال عليه الصلوٰة ولسلام خلكوته وويل چي تر درې ورځي بالا به ځوك د اضحيې غوښي نه خوري. خلكو هم د عليه الصلوٰة ولسلام د فرمودې سره موافق عمل وكړی، او بل كال چي د اضحيې وخت راغلي نو خلكو د عليه الصلوٰة ولسلام ځخه پوښتنه وكړه چي سږ كال هم د تېر كال قانون دي؟ عليه الصلوٰة ولسلام ورته وويل چي تېر كال خلك په شدت او سختي كي وه نو ځكه ما امر وكړی چي تر درې ورځي بالا به ځوك د اضحيې

غوښې نه خوري تاچې مسكينانو ته ښې برخې ورسېږي سږ كال چې پر خلكو فراخي ده فكلوا وادخروا وتصدقوا او كما قال ﷺ.

قال ﴿ويتصدق بجلدها﴾ او د اضحيې پوست دې هم خيرات كړي درويش وايي داغه رنګه ځل كه يې درلودي لما جاء في الحديث.

قال ﴿او يعمل منه آلة تستعمل في البيت﴾ او يا دې جوړ كړي د اضحيې د پوست څخه يو شى چې په كور كې مستعملېږي لكه د اوارېدو شى او يا سولاغه يا ستر خوان وغيرها لان الانتفاع بالجلد غير محرم.

**درويش وايي**:- چې په افغانستان كې عادت د خلكو دا و چې اضحيه كه به غويي واى د هغه څرمن او پوست به يې يو مسكين ته وركاوه او كه اضحيه بوزه يا اوښ واى د هغه پوست به يې هم مسكين ته وركاوه، او د بوزې د پوست څخه به يې د شلومبو غړكه جوړه كړه يا به يې ژى د كور د پاره جوړ كړى، او كه به اضحيه پوسه واى چونكه د هغه د پوست خريداران بېخي نه وه او غړكه وغيره هم نه ځندي جوړېدله نو د اضحيې د پسه وړى به يې ځندي وشكولې او د هغو څخه به يې د كور بالښت او يا بل شى جوړ كړى او پسه به يې په اور والوايه او تر اوسه هم دا رواج جاري دي ولاجرح في ذالك لانه انفع لهم تر پوست كښلو لما مر من عدم المشترى لذالك، او په پاكستان كې چونكه د هر پوست كه د غوايي وي او كه د بوزې او كه د پسه وي خريداران يې بېخي ډېر دي او د پسو پوستونه وطالبانو ته د مساجدو او مدرسو په

ښو پيسو ورخرځېږي، نو ځکه په پاکستان کې د پسه د پوست کنبل او پوست يې د طالبان يا مساجدو او مدرسو ته ورکول افضل دي تر الويلو، والاحكام الشريعية تتبدل باعتبار العرف والاصطلاح.

مسئله:- پوست د اضحيې به قصاب ته په مزدوري کې نه ورکوي لماورد من النهى عن ذالك بلکه قصاب ته علحده مزدوري ورکړي.

قال ﴿والافضل ان يضبح اضحيته بيده ان كان يحسن الذبح﴾ او ښه کار دادي چې صاحب د اضحيې اضحيه پخپل لاس ذبح کړي که يې ذبح زده وه لانه عليه الصلوٰة ولسلام ذبح اضحيته بيده المباركة، او که يې ذبح نه وه زده نو دي د بل چا څخه کهمك وغواړي لکه عوام د افغانستان او پاکستان چې د طالب العلم څخه کهمك غواړي يعني په طالب يا ملا صاحب يې ذبح کوي.

قال المصنف رحمه الله ﴿ويكره ان يذبه الكتابى﴾ او مکروه دي چې ذبح کوي يعني اضحيه د مسلمان کتابي يعني يهودي يا نصراني، ولي چې اضحيه خو يو داسي کار دي چې په هغه کې ثواب د اخرت سته او کتابي اهل د ثواب نه دي.

مسئله:- که چېري امر وکړي مسلمان وکتابي ته چې دا زما اضحيه راذبحه کړه روا ده ولي د کتابي ذبح خو روا ده، او کتابي که څه هم اهل د ثواب نه دي لکن په امر د مسلمان نائب دده ګرځي كذا فى الهدايه.

قال ﴿واذا غلط رجلان فذبح كل واحد منهما اضحية الاخر اجزى منهما ولاضمان عليهما﴾ او که خطا وتل دوه کسان چې هر

یوه د اضحیې د پاره پسه رانیولی و نو هر یوه د هغه بل اضحیه ذبح کړه د دواړو څخه کفایت کوي یعني د دواړو د اضحیې غاړې خلاصېږي او ضمان پر یوه هم نسته، او امام زفر رحمه الله وایي چې د یوه هم غاړي نه خلاصیږي او پر هر یوه ضمان د هغه بل د پسه لازم دي والدلائل فی الشروح.

# ﴿كتاب الايمان﴾

## دا باب دي په بیان د احکامود قسمو

پوهه نیسه:- چي ایمان په زور د الف جمع ده د یمین چي لغوي معنی یې قوت دي ځکه راسته لاس ته یمین وایي ولي چی په غالبه خلکو کي تر چپه لاس قوي وي، او په شرح شریفه کي په معنا د قسم اخیستو په نامه د خدای جل جلاله یا پر نفي یا پر اثبات چي هم په دې قسم سره جانب د فعل یا د ترك قوي کیږي، واما الایمان په زیر د الف هغه مصدر دي د باب د افعال چي په معنا د اقرار او تصدیق ده او مقابل د کفر دي هغه معنا په دې باب کي مقصود نه ده کما لایخفی

قال المصنف رحمه الله ﴿الایمان ثلثة أضرب یمین غموس ویمین منعقدة ویمین لغو﴾ قسمونه په نیز زموږ یعني د احنافو رح په نیز درې قسمه دي چي مصنف یې نومان ذکر کړه.

قال ﴿فيمين الغموس هی الحلف علی امر ماض بتعمد الكذب فيه﴾ نو يمين غموس قسم اخيستل دي پر تېر سوي شي او كار په قصد د درواغو په دغه تېر سوي كار كي.

فائده:- لفظ د يمين مونث سماعي دي ځكه يې صفات مونث راځي.

فائده:- غموس په لغت كي په اوبو كي غوټه كېدو ته وايي او سخت كار ته هم وای نو دې يمين ته چي غموس وايي په دې سبب چي يو خو ډېر سخت قسم دي او بل دغه قسم سړی په ګناه كي ډوبه وي په دې دنيا او په اخرت كي په اور د دوزخ كي كما سيئاتی لكن چي ببله توبې مړ سي.

ښوونه:- چي په بنايه شرح هدايه كي وايي چي ذكر د امر ماض په متن كي بناء پر غالب دي، ولي كه يو سړی قسم واخلي والله انی لزيد وهو يعلم انه ليس بزيد فهو يمين غموس، مع عدم المضی فيه.

قال ﴿فهذه اليمين ياثم بها صاحبها﴾ نو د يمين غموس حكم دادي چي په دې قسم سړی ګناه كاره كېږي يعني په ګناه كبيره سره كما فی كتب الفقها رحمهم الله ولي چي ددې قسم په باره كي عليه السلام داسي فرمايلي دي، فليتبوء بوجهه مقعده من النار (رواه ابو داؤد بطوله عن عمران بن حصين رضي الله عنه).

قال المصنف رحمه الله ﴿ولا كفارة فيها الا التوبة والاستغفار﴾ او كفاره نسته په يمين غموس كي مګر توبه، چي بيا به زه داسي قسم نه

اخلم او طلب د بخښنې د خدای ﷻ څخه، او امام شافعي رحمه الله وايي چي کفاره پر لازمه ده بالفور ولي چي کفاره خو د پاره د بې حرمتي د نامه د خدای ﷻ ده او دې قسم والادا بې حرمتي وکړه چي استشهاد يې په نامه د خدای ﷻ وکړي په درواغو کي او موږ وايو چي د ابن عباس رضي الله عنه او د ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دي كنا نعد اليمين الغموس من الكبائر التى لاكفارة فيهن" يعنې موږ شميرى يمين غموس د هغو کبائرو ګنهو څخه چي کفاره پکښې نسته يعني لکه کذب بهتان غيبت وغيره.

**ښوونه**:- چي په لفظ کي كنا چي متکلم مع الغير ده اشاره ودې ته ده چي اصحاب کرام رضي الله عنهم ټوله پر دې خبره متفق وه فيكون اجماعا منهم، او په بل حديث نبوي ﷺ کي داسي راغلي دي خمس من الكبائر التى لا كفارة فيها، الشرك بالله، وحقوق الوالدين، والفرار من الرحف، وقتل النفس بغير حق، واليمين الفاجرة، يعني ددغو ګناهو مالي او بدني کفاره نسته بلکه ددې ګناهو صرف او صرف توبه او استغفار علاج دي، او يمين فاجره يعني د درواغو قسم هم دغه يمين غموس دي.

قال ﴿واليمين المنعقدة ان يحلف على الامر المستقبل ان يفعله اولا يفعله﴾ او يمين منعقده دادي چي پر راتلونکي کار قسم واخلي چي زه به يې کوم او يا يې نه کوم، چي په عربي دې ته قسم اجابيه او سلبيه هم وايي.

**ښوونه**:- چي منعقده يې په دې سبب بولي چي حالف ګويا غوټه کړه کفاره د کار په کولو او يا نه کولو پوري.

قال المصنف رحمه الله ﴿فاذا حنث في ذالك لزمته الكفارة﴾ نو كه دی حانث سو په دغه قسم کي يعني پر خلاف د قسم يې عمل وكړی يعني په ايجاب کې سلب وكړی او يا يې په سلب کي ايجاب وكړی نو پر ده لازمه ده كفاره چي بيان بې راسي ان شاء الله تعالى، لقوله ﷻ ولكن يؤاخذكم بما عقدتم الايمان"

قال ﴿ويمين اللغو ان يحلف على امر ماض وهو يظن انه كما قال والامر بخلافه﴾ او يمين لغو دادي چي پر تېر سوي كار قسم واخلي او ده غالب گمان داوي چي دغه كار داسي دي يعني لكه ما چي قسم پر واخستی لكن حال د هغه څخه مخالف وي يعني كار دغسي نه وي لكه ده چي قسم پر واخستی، لكه يو سړی چي ووايي قسم په خدای ﷻ دي چي ما يوه مياشت مثلا فلانی كار كړی دي او ده غالب خيال هم دغسي وي، او يا ووايي چي ما فلانی كار يوه مياشت د مخه مثلا نه دي كړی او حال پر خلاف ده د قسم وي يعني چي دی وای ما كړی دي او هغه يې نه وي كړی او يا چي ما نه دي كړی هغه كار يې كړی وي.

**پوه سه**:- چي ذكر د ماض دلته هم پر غالب د يمين لغو بناء دی، ولي چي سړی بل څوك د لېري ويني او ووايي چي قسم په خدای ﷻ دي چي هغه سړی زيد دي مثلا او هغه سړی عمرو وي داهم يمين لغو دي، او بعض ائمه رحمهم الله وايي چي يمين لغو دادي چي د سړي پر

خوله جاري وي بېله قصده د قسم لکه والله که دا کار وکړم يا والله که دا کار پرېږدم، درويش وايي چي ورته قسمونه په پښتو کي بېخي ډېر دي.

قال المصنف رحمه الله ﴿فهٰذه اليمين نرجو ان لا يؤاخذ الله تعالیٰ بها﴾ نو دا رنګه قسم موږ اميد و خدای جل جلاله ته لرو چي حالف دې په ونه نسي لقوله تعالیٰ لا يؤاخذكم الله باللغو فى ايمانكم الآيه.

پوښتنه:- چونکه داحکم په قرآن سره ثابت دي نو مصنف رحمه الله ولي نرجو وويله او قطعي حکم يې ونه کړی ؟

ځواب:- سبب د حکم د رجاء دادي چي په تفسير کي د يمين لغو اختلاف دي کما ذكرنا او هغه چي صاحب جوهره وايي چي لفظ د نرجو يې تواضعا ويلی دي چندان جواب نه دي ولي چي تواضع خو هر ځای مطلوب ده او سره ددې چي مصنف رحمه الله په ټوله کتاب او هيڅ مصنف د فقهي هم داشان تواضع نه ده کړې، والله اعلم، درويش.

قال ﴿والقاصد فى اليمين والمكره والناسى سواء، ومن فعل المحلوف عليه مكرها او ناسيا فهو سواء﴾ او چي په قصده سره قسم واخلي او يا څوك په زوره قسم په واخلي او يا په هېره قسم واخلي ټوله سره برابر دي.

پوښتنه:- چي د ناسي د يمين صورت دادي چي دی بېخي غافله وي د تلفظ څخه په لفظ د قسم وروسته يې وربيادسي چي تاخو قسم واخستي.

**فائده**:- د خاطي فی الیمین هم داغه حکم دي، چي صورت يې دادي چي يو سړی اراده د سبحان الله ويلو لري او پر خوله يې قسم ورسي كذا في العنايه،قال الرسول الله ﷺ ثلث جدهن جد وهزلهن جد، الطلاق والعتاق، واليمين، او كه چا هغه كار چي ده قسم پر اخستی و چي زه به يې نه كوم مثلاً بل سړي په زوره هغه كار په وكړی او يا يې په هېره هغه كار وكړی داهم سره برابر دي يعني حانثېږي يا ګناه كاره كېږي.

قال المصنف رحمه الله ﴿واليمين بالله او باسم الله من اسمائه كالرحمٰن والرحيم او بصفة من صفات ذاته كعزة الله وجلاله وكبريائه﴾ او قسم په نامه د الله جل جلاله چي اسم ذات شريف دي، لكه والله يا بالله يا تا الله، او يا په يو نامه د نومانو د خدای جل جلاله لكه والرحمٰن والرحيم او په يوه صفت د صفاتو د ذات دخدای جل جلاله لكه چي حالف ووايي وعزت الله يا وجلال الله، او يا په كبريا د خدای جل جلاله دي مي قسم وي.

پوه سه:- چي د اسم اطلاق كه څه هم ډېر دي لكن دلته مرداد د اسمه هغه لفظ دي چي د لالت كوي پر ذات موصوفه بصفت لكه چي رحمٰن رحيم وغير ذالك دي، او د صفت معاني كه څه هم ډېري دي لكن مراد ځندي په دې ځاى كي هغه مصدر دي چي مذكوره اسماء ځندي مشتق دي لكه رحمت د رحمٰن او رحيم د پاره يا عزت د عزيز د نامه د پاره يا علم د عليم د نامه د پاره الى غير ذالك من الاسماء ومصادر، عنايه، درويش.

**فائده**:- د قسم د اسم د پاره دا شرط نه دي چي قسم به هغه اسم وي چي په عرف د خلکو جاري وي، او په قسم کي د صفت تعرف شرط دی.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿الا قوله وعلم الله فانه لا يكون يمينا﴾ مګر نه دا قول د حالف وعلم الله ولي چي داسي ويل قسم نه دي يو په دې سبب چي قسم په علم الله سره متاعرف نه دي که څه هم علم مصدر د عليم دي، او بل په دې سبب چي علم ګاهي په معنا د معلوم راځي لکه په دې دعاء کي، اللهم اغفر علمك فينا ای معلومك من المعاصی فينا، او په معلوم سره خو قسم نه دي روا، هدايه، درويش.

قال ﴿وان حلف بصفة من صفات الفعل كغضب الله وسخط الله لم يكن حالفا﴾ او که چا قسم واخستی په يو صفت يعنې يعني مصدر سره چي د هغه څخه فعل مشتق کېدی نه اسم په معناي مذکوره سره لکه غضب الله وسخط الله هغه سړی حالف نه دي ولي چي غضب اللهي او سخط اللهی اور ته د دوږخ وايي او هغه قسم په مخلوق دي، په جوهره کي وايي چي که چا داسي وويله ورحمة الله دا هم قسم نه دي ولي چي د رحمت څخه ګاهي جنت مرادېږي لکه په دې آيت کي ففی رحمة الله هم فيها خالدون ای فی جنته، او ګاهي د رحمت څخه باران مرادېږي لکه خلك چي په وخت کي د قحط المطر وايي خدای پاك دي يو ښه رحم وکړي يعنې باران، وکل ذالك مخلوق انتهى مع الزياده، درويش.

قال ﴿ومن حلف بغیر الله عزوجل لم یکن حالفا کالنبی ﷺ والقرآن والکعبة﴾ او که چا قسم اخستی په غیر د نامه د خدای ﷻ لکه چي ووایي چي زما دي په نبي ﷺ قسم وي، او یا ووایي چي زما دي په قرآن شریف قسم وي، او یا دي زما په کعبه شریفه قسم وي نو هغه سړی حالف نه دي، لقوله علیه السلام من کان منکم حالفا فلیحف بالله او لیذر.

**فائده**:- په مذکوره شیانو قسم اخستل اگر چه قسم خو نه دي، چونکه دا درې شیان شرافت شرعي متیقن لري نو ځکه په قسم اخستو کي ددغو شیانو حالف گناه کار نه دي، او که داسي شی قسم وي چي شرافت شرعي یقیني نه لري نو په هغه قسم اخستل گناه هم ده لکه پښتانه چي وایي زما دي په شاه آغا قسم وي او یا وایي چي زما دي په غوث الاعظم رحمة الله علیه قسم وي او یا ورته داسي الفاظ په قسم کي استعمال کړي بلکه په دغه قسمو کي وهابیان حکم د شرك کوي ولي چي ددوي په نېز تعظیم د ماوراء الله شرك دي، او قسم اخستل په شي سره خوا مخوا تعظیم دي، لکن د وهابیانو د شرك غشي ډېر تېره دي حتی چي امت مرحومه غیر ددې د معتقداتو ځخه ټوله مشرکان دي او د یو ولي الله وزیارت ته که څوك سفر وکړي هغه هم مشرك دي حتی که په نیت د زیارت د سید المرسلین ﷺ څوك سفر وکړي هغه مشرك دي اعاذنا الله من امثال هذه العقائد الزائغه.

**پوښتنه**:- په شرعي محکمو کي د افغانستان چي مدعي شاهدان نه لري نو قاضي ومدعي عليه ته قرآن مبارك پر مېز د قضا کښېږدي او ده ته قسم په ورکوي او سره ددې چي قرآن مبارك خو قسم نه دي کما قال المصنف رحمة الله عليه ؟

**ځواب**:- قاضي د محکمې دي مدعى عليه ته داسي نه وای چي ستا دي په دغه قرآن قسم وي، بلکه داسي ورته وای چي ته داسي ووايه والله بالله او پر دې قرآن لاس کښېږده دا سړی د والله بالله څخه نه ببرېږي ولي چي د کوچنوالي څخه دی په والله بالله عادت وي صرف د قرآن دلاس اېښولو څخه ببرېږي نوځکه که حق جانب نه پر قرآن شریف لاس اږدي او ځان ملامت کړي دا ددوي غايت جهل او نا پوهي او په دين ناخبر تياده.

**واقعه**:- درويش وايي چي يو وخت ما په سنځري کي درس کوی يو دوه کسه راغله په يو شي کې سره دعوه وه، او يو مدعي او بل منکرو ما مدعي ته وويل چي ته شاهدان لري هغه ويل يا، ماورته وويل چي دا بل سړی به تاته قسم واخلي هغه منکر وويل چي ته ماته څرنګه قسم اږدې ماورته وويل چي قرآن شريف به پر دامېز کښېږدو ته به ووايه چي والله که دغسي ده لکه زما مدعي چي وايي او پر دې قرآن شريف به لاس کښېږدې، منکر راته وويل چي مولوي صاحبه والله بالله که خبره بل ډول ده لکه زه چي وايم لکن قرآن والله که واخلم چي دا بسته واله څوك راکوي بس روان سو.

**واقعه**:- بل وخت بيا دوه کسان يو مدعي او بل منکر راغله په يوه دعوې کي بيا ما ومدعي ته وويل چي ته شاهدان لرې ده وويل يا، ماورته وويل چي دا بل سړی يعني مدعي عليه ته به قسم کښېږدو ده راته وويل چي ته څرنګه قسم ورته اږدې ماورته وويل چي دی به پر قرآن شريف لاس کښېږدي ده راته وويل چي دغه سړي زما سره ظلم کړی دي ته داسي قسم ورته کښېږده چي دده کور ورخراب کړي قرآن شريف به نو په ده څه وکړي، ما ورته وويل چي هغه کور خرابي قسم څرنګه دي، ده وويل چي دی دي د شاه آغا پر خوا اوه ګامه واخلي او ودي وايي چي خبره داغسي نه ده لکه زما مدعي چي وايي نو به يې شاه کور ورخراب کړي ما ورته وويل چي دا خو قسم نه دي ده راته وويل چي دا قسم مي حق نه دي نو زه ولاړم دعوه يې ختم کړه.

قال المصنف رحمه الله ﴿وحرف القسم ثلثة الواو كقوله والله والباء كقوله بالله والتاء كقوله تالله﴾ او هغه حرفونه چي په قسم کي مستعمل دي درې دي چي واو او با او تا دي په هغه مثالو کي چي مصنف رحمه الله ذکر کړي دي.

**توضيح**:- چي د غه درې حرفه په قسم کي ډېر مشهور دي او په قرآن مبارك کي هم مذکور دي كقوله تعالى والله ربنا ما كنا مشركين حكاية عن قول المشركين يوم القيامة" وكقوله تعالى بالله ان الشرك لظلم عظيم" وكقوله جل ذكره تالله لاكيدن اصنامكم حكايت عن قول ابراهيم عليه السلام .

**فائده**:- فرق په مابين كي د دغو حرفو دادي چي باء عامه ده تر واو او تاء ولي چي باء پر اسم ظاهر او ضمير دواړو داخلېږي نحو حلفت بالله وحلفت به " بخلاف الواو او التاء فانهما لاتدخلان على الضمير، او واو بيا عام دي تر تاء ولي چي واو پر ټولو اسماؤ او صفاتو د خداى ﷻ داخلېږي بخلاف التاء ولي چي دا خاصه په اسم ذات سره ده چي الله دى. ولي داسي ويل كېږي چي واللرحمٰن والرحيم وغيرهما او داسي نه ويل كيږي چي تالرحمٰن بلكه تالله فقط ويل كېږي الجوهره والدرويش.

قال ﴿**وقد تضمر الحروف فيكون حالفا كقوله الله لاافعل كذا**﴾ او ګاهي حروف د قسم محذوفېږي نو سره د حذفه سړى حالف ګرځي لكه سړى چي واويي الله زه داسي نه كوم، ولي چي حذف د حرف د عادت څخه دي د عربو د پاره د اختصار، هدايه.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿**وقال ابو حيفة رحمة الله عليه اذا قال وحق الله فليس بحالف**﴾ او امام اعظم رحمة الله عليه وآيي كه چا داسي وويل وحق الله نو دا سړى حالف نه دي.

**پوښتنه**:- چي دا قول دامام محمد رحمة الله عليه دي ولي چي حق د خداى ﷻ پر بندګانو دادي چي دده عبادت به كوي او شرك به نه كوي نو ګويا داسړى داسي وويل والعبادات لافعلن كذا او دا خو قسم نه دي، او امام ابو يوسف رحمة الله عليه وايي چي وحق الله قسم دي ولي چي حق د صفاتو څخه د خداى ﷻ دي نو ګويا ده داسي وويل والله حق آه.

قال ﴿ولو قال اقسم او اقسم بالله او احلف او احلف بالله او اشهد او اشهد بالله فهو حالف﴾ او كه يو سړى صرف لفظ د اقسم ووايه، او يا يې داسي وويل احلف فقط او يا يې وويل احلف بالله او يا يې يوازي اِشهد ووايه او يا يې اشهد بالله ووايه نو دا سړى حالف دي، په هدايه كي وايي لان هٰذه الالفاظ مستعملة فى الحلف وهٰذه الصيغة للحال حقيقة وتسعمل فى الاستقبال بقرينة فجعل حالفا فى الحال يعني لعدم قرينة الاستقبال والشهادة يمين، كما قال الله عز سلطانه يعني فى حق المنافقين قالوا نشهد انك لرسول الله ثم قالو اتخذوا ايمانهم جنة الآيه. يعني ان المنافقين ما حلفوا صراحة بل قالوا نشهد فقط فجعل ذالك يميناً منهم، انتهى مع زياده درويش.

قال المصنف رحمه الله ﴿وكذالك قوله وعهد الله وميثاقه فهو يمين او على نذر او نذر الله﴾ او داغه رنګه يمين دي د سړي دا قول وعهد الله وميثاقه او داغه رنګه يمين دي على نذر او نذر الله لقوله جل ذكره واوفوا بعهد الله اذا عاهدتم ولاتنقضوا الايمان فجعل الله العهد يميناً والميثاق بمعنى العهد، جوهره، او په ابو داؤد كي حديث نبوي ﷺ دي چي عليه السلام وويل من نذر نذراً ولم يسم فعليه كفارة يمين وكذا خرج هذا الحديث ابن ماجه كلاهما عن ابن عباس رضي الله عنه.

قال ﴿وان قال ان فعلت كذا فانا يهودى او نصرانى او مجوشى او مشرك او كافر كان يميناً﴾ او كه سړي وويل كه ما دا فلانى كار وكړى نو زه به يهودي يم او يا نصراني يم او يا مجوسي يم او

یا مشرك یم او یا کافر یم دا ټوله الفاظ یمین او قسم دي، نو که پر مستقبل کار یې دغه الفاظ استعمال کړه نو پر ده کفاره سته کې ځان حانث کړی، او که یې پر تېر سوي کار دغه الفاظ استعمال کړه او هغه کار ده کړی و، نو یمین غموس دی. و حکمه قد مر مګر کافر کېږي نه په دې یمین غموس کې.

**درویش وایي** :- چې چونکه مذکوره الفاظ په پښتو کې ډېر رواج دي نو باید د دې پوره تحقیق وکړل سي. هغه دا دی چې محمد بن مقاتل رحمه الله وایي چې سړی دغه الفاظ پر طریقه د یمین غموس استعمال کړي نو دی په کافر کېږي، ولې ده تعلیق د کفر په هغه شي وکړئ چې هغه فی الحال موجود سوی دی معناً، فکانه هو کافر و امثاله والاصح انه لم یکفر.

**درویش وایي** :- چې دغه سړي چې دا الفاظ وویل عقیده یې دا وه چې په داسې الفاظو سړی کافر کېږي، نو دی په صورت د غموس کافر سو او که یې عقیده نه وه، نو نه دی کافر، وهٰذا مما افتی به فی المجتبٰی والزخیره، لکن د هغه سره د کبیرې ګناه څخه نه دي خلاص، او په بحر الرائق کي وایي چې صحیح دا ده چې دغه الفاظ ویونکي که په دې خبر و چې دغه الفاظ د یمین دي یا منعقده یا غموس لکه دفقهي شریفي علماء چې خبر دي نو په ماضي یعني غموس کي نه کافر کېږي البته ګناه کبیره ده، او په منعقده یعني مستقبل کي که حانث سو کفاره یمین پر لازمه ده او که یې ځان نه کړی حانث نو د کفر او کفارې دواړو څخه خلاص سو لکن دغه الفاظ د مسلمان د پاره نازیبا دي، او که دا سړی په دې خبره جاهله و

چي دا الفاظ د يمين د پاره دي بلکه د هغه دا عقيده وه چي په دغو الفاظو سره د غموس په صورت کي سړی کافر کېږي او د منعقده په صورت کي هم سړی کافر کېږي نو د غموس په صورت کي خو دستي کافر سو، او د منعقده په صورت کي په وخت د حنث کافر سو لانه لما اقدم على الحنث علم انه راض بالکفر والرضا بالکفر کفر.

**درویش وایي**:- چي دېر کتابونه د فقهي شریفي پر دغه فتوی ورکوي والله اعلم بالصواب.

حاصل داچي دغه الفاظ د مسلمان د پاره لوي خطر دي باید چي مسلمان د دغسي الفاظ څخه پرهېز وکړي او خپل ایمان په خطر کی وانه چوي.

قال المصنف رحمه الله ﴿**وان قال فعلى غضب الله او سخطه فليس بحالف**﴾ او که سړي وویل چي پر ما دي غضب د خدای او یا سخط د خدای جل جلاله وي نو دی حالف نه دي، ولي چي سخط او غضب خو عذاب ته د خدای جل جلاله وایي نو ګویا ده داسي وویل چي پر ما دي عذاب د خدای جل جلاله وي او داسي لفظ خو قسم نه دي.

قال ﴿**وكذالك ان قال ان فعلت كذا فانا زان او شارب خمر او آكل الربوا او اكل الميتة**﴾ او داغه رنګه حلف نه دي که سړي داسي وویل چي که ما دا کار وکړی نو زه زنا کار یم، او یا شراب خوړونکی یم او یا سود خوره یم او یا د مرداري خوړونکي یم ولي دا تهوله خو ګنهونه دي او مرتکب د ګناه خو کافر نه دي او اکل د میتې خو په وخت کي د مخمصې

روا هم دي، او كه يې داسي وويل چي كه ما داكار وكړى نو زه حلال بلونكى د زنا يم يا د شراب چښلو وغيره نو ددې حكم لكه د مخ د مسئلې دي يعني زه به يهودي يم آه على الاختلاف المذكور انفاً.

قال ﴿وكفارة اليمين عتق رقبة يجزئ فيها ما يجزء فى الظهار﴾ او كفاره د يمين ازادول دي د مريي يا مينځي، او كافي ده په كفاره يمين كي هغه رقبه چي په كفاره ظهار كي كافي ده كما مر هنالك، قال فى البنايه چي په كفاره كي د ظهار مسلمانه رقبه او كافره رقبه نر او ښځه لوي او كوچنى ګرده روا او كافي دي نو په كفاره كي د يمين هم ګرده كافي دي، او په دواړو سترګو ړوند ندي روا، او چي دواړه لاسونه يې پرې وي او يا دواړي پښې يې پرې وي نه ده كافي، او چي يو لاس او يوه پښه يې پر يوه طرف پرې وي او يا شل وي هم نه ده روا، او كه يې يو لاس پرې و پر يوه طرف او پښه يې پر بل طرف هغه روا دي او په يوه سترګه ړوند او يا چي يو لاس يې يا يوه پښه يې پرې وي هغه په دواړو كفارو كي روا دي، او په كوڼ كي اختلاف د مشائخو سته لكن صحيح دا دي چي روا دي انتهى مع الزيادت درويش.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان شاء كسا عشرة مساكين كل واحد ثوبا فما زاد وادناه مايجوز فيه الصلوة﴾ او كه يې خوښه وي د حالف نو لسو مسكينانو ته دي كالي وركړي يعني كه نوي وي او كه زاړه لكن ښځي بوسيده جامه به نه وي، هر يوه ته دي جلا جلا جامه وركړي، او يا بالاتر

هغه او کمه درجه د جامې هغه ده چي لمونځ پکښي روا وي يعني عورت په پټ وي.

**نوروبخش وايي**:- چي په انشاء کي اشاره ودې ته ده چي په دې کفاره کي ترتيب شرط نه دي.

**پوهه بسته**:- چي صاحب جوهره وايي چي نو قميص دي لکن نه اجزاء دده على العموم نه ده صحيح ولي چي قميص د پنجابيانو يا د هندوستانيانو يا د بلوڅانو يا د بعض قندهاريانو يا د هراتيانو وغيرهم کافي نه ولي په هغو قميصانو سره ستر د عورت نه کېږي، بلکه قميصان د عربو او د هلمنديانو او د روزګانيانو د طالبانو قميصان کافي دي، او صاحب مجمع الانهر وايي يا ازار يعني لنګ لکن دومره وي چي د نو څخه لاندي زنګنونه پکښي پټ سي، او دى وايي يا دي پټو وي لکن په پټو د اشمال پر ډول لمونځ روا دي نو بايد دغونه غټ پټو ورکړي او هغه چي صاحب جوهره وايي چي پرتوګ يوازي کافي نه دي دا خبره د متن څخه ده، قال امام محمد رحمه الله چي پرتوګ کافي دي ولي چي لمونځ يوازي په پرتاګه کي روا دي، لکن کفايت ددې جامه هلته دي که يې نر ته جامه ورکول او که يې ښځي ته جامه ورکول نو سره ددغو جامو به پوړنى هم ورکوي ولي سر ددې عورت دي او لڅ سر يې لمونځ نه دى روا بلکه ټوله عورت ځايونه به د ښځي وريټوي.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان شاء اطعم عشرة مساكين كالاطعام فى الكفارة الظهار﴾ او كه يې خوښه وي لسو مسكينانوته دي ډوډۍ وركړي لكه په كفار ظهار كي چي وركړه كېږي.

پوره نيمه:- چي دغه يوه كاسه د اوربشو يا د جوارو يا د خرما او يا نيمه كاسه د غنمو يا د اوړو وهر مسكين ته ده.

مسئله:- قيمت ددغو شيانو وهر مسكين ته جلا جلا هم كافي دي.

مسئله:- كه لس كسه مسكينان مېلمانه كړي غرمه او ماښام ډوډۍ وركړي په هغه ډول چي حالف يې په كور كي غرمه او ماښام خوري د هغه ميانه درجه، قال الله تعالى من اوسط ماتطعمون اهلكم".

مسئله:- كه په لسو مسكينانو كي يو داسي كوچنى و چي ځان يې پوره نه سواى مړه ولى، نو د كوچني پر ځاى به بل مسكين ته ډوډۍ وركوي، كذا فى البنايه مع الزيادت ونقص.

قال ﴿فان لم يقدر على احد هٰذه الاشياء صام ثلثة ايام متتابعات﴾ او كه يې پر يوه ددغو درو شيانو قدرت نه درلودي نو دي درې روژې ونسي پرله پسې، او امام شافعي رحمه الله وايي چي تتابع شرط نه دي بلكه دده خوښه ده كې پيوسته نسي او كه يې سره جلا جلا، دى وايي چي په قرآن مجيد كي خو صيام مطلق بېله قيده د تتابع راغلى دى، قال فى الهدايه ولنا قرائة ابن مسعود رضي الله عنه چي هغه داسي دي صيام ثلثة ايام متتابعات" او قرات د ابن مسعود رضي الله عنه لكه خبر مشهور دي چي زيادت په قرآن پر روادي كما تقرر فى كتب الاصول.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿فان قدم الكفارة على الحنث لم يجزه﴾ او كه حالف كفاره د مخه تر حنث وركړه هغه كفايت نه كوي.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ومن حلف على معصية مثل الا يصلى او لا يكلم اباه او ليقتلن فلاناً حنث نفسه ويكفر عن يمينه﴾ او كه چا قسم واخستى پر ګناه باندي يعني چي زه به يې كوم كه هغه ګناه كبيره وي او كه صغيره وي، لكه چي داسي ووايي چي زه به لمونځ نه كوم، او يا د پلار سره خبري نه كوم، او يا فلانى سړى وژنم، يانور ورته ګنهونه چي زه به زنا كوم يا لواطت او يا لمونځ په جماعت نه كوم وامثال ذالك كثيرة، نو پر دې سړي لازمه ده چي ځان دي په قسم كي حانث كړي او د قسم كفاره دي وركړي، فى الهدايه لقوله عليه السلام من حلف على يمين او مقسم عليه وراىٰ غيرها خيراً منها فليات بالذى هو خير ثم ليكفر عن يمينه، ولان فيما قلنا يعنى الحنث تفويت البر يعنى عدم الحنث الى جابر وهو الكفارة ولاجابر للمعصية عند انتهى.

**درويش وايي:-** وايي چي ډېر عوام كالانعام چي ورته قسم واخلي او يو عالم ورته ووايي چي ته دا قسم پر ځان مات كړه يعني ځان حانث كړه او كفاره وركړه، جاهل ورته ووايي چي څرنګه به قسم پر ځان ماتوم دا خو ګناه ده، عذر از ګناه بدتر" او عجبه خو لاداده چي بعض جاهلان امامان و هغه سړي ته چي ورته قسم يې اخستى وي ووايي چي څه بې عقله پر ګناه كولو قسم كله ستة، يعني دا قسم پر ګناه ښخي صحيح نه دي يعني كفاره نسته پكښي، نو پر داسي ملا صاحب بايد سړى هغه متل تېر كړي چي غلبېل كوزې ته ويل ستا څونه لوي سورى دى.

قال المصنف رحمه الله ﴿واذا حلف الكافر ثم حنث فی حال الكفر او بعد اسلامه فلا حنث عليه﴾ او كه قسم واخستی كافر او بيا حانث سو په حال كي د كفر او يا وروسته تر اسلام حانث سو نو پر ده حنث نسته يعن كفاره نسته، دليل يې دادي چي كافر اهل د يمين نه دي، ولي د يمين انعقاد د جهته د تعظيم د اسم الله دي، او سره د كفره تعظيما لاسم الله صورت نه لري، او نه كافر اهل د كفارې دی ولي كفاره خو عبادت دي او په عبادت كي نيت ضرور غواړي نو كفاره د كافر نه ده صحيح لكه لمونځ او روژه، كذا فی الجوهره.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن حرم علی نفسه شيئاً مما يملكه ولم يكن محرما عليه﴾ او كه چا حرام كړی پر ځان باندي يو شی د هغو شيانو څخه چي دده په ملك كي وه نو هغه شی دده په وينا نه حرامېږي مثلا يو سړي دا سي وويل چي دغه زما جامه پر ما حرام كې زه واغوندم، او يا دغه ډوډی پر ما حرامه ده كې زه وخورم او يا مثل ددغسي الفاظو.

پوښتنه:- چي مصنف رحمه الله دغه لفظ ووايه ممايملكه ولي كه هغه شی دده په ملك كي نه وي نو دی په دغه وينا كي صادق دي، دليل د عدم حرمت يې دادي چي هغه شی د سړي ملك وي خدای جل جلاله ورته حلال كړی دی، نو دی نه سي كولی چي د خدای جل جلاله د حكم په مقابل كي بل حكم وكړي.

قال ﴿فان استباحه فعليه كفارة يمين﴾ او كه دغه سړي معامله د مباح د هغه شي سره وكړه مثلا هغه جامه يې واغوستل او يا يې هغه ډوډی وخوره نو پر ده كفاره ديمين لازه ده، حاصل دا چي تحريم د حلال

يمين دي. قال الله تبارك تعالى يا ايها النبي لم تحرم ما احل الله لك الى ان قال تحلة ايمانكم الآيه" ددې ايات شان نزول په طويل حديث کې د بخاري شريف او په نورو کتابو کې دحديث شريف داسې ذکر سوي دي چې آنحضرت ﷺ د بعض ازواج مطهرات رضی الله عنهن حجرو ته به د مازديګر د لمانځه وروسته ورتلی، او هغې مبارکې ته څه عسل چې د پلار ګني د خوا راغلي وه ﷺ ته به يې ورکولله او ده مبارك خوړله چې طبعا د ﷺ ډېر خوښ وه نو بعض نورو ازواجو مطهراتو مشوره ورته وکړه چې د هري يوې کور ته چې ﷺ ورسي هغه دي ورته ووايي چې تا مغافر خوړلي دي چې يوه بد بويه ژړا د يوې درختې ده نو ځکه دي د خولې د مغافر بوي ځي خير قصه کوتا هرې يوې چې دا خبره و ﷺ ته وکړه ده مبارك ورته وويل چې ما مغافر نه دي خوړلي بلکه د فلانۍ په کور کې مې عسل وخوړله او د آينده د پاره پر ما عسل حرام دي، نو دا آيت نازل سو او خدای ﷻ دی امر کړی په تحلة ايمانكم" په عبارت، يعني په قسم کې ځان حانث کړه او کفاره ورکړه، نو ددې کبله تحريم د حلال يمين دي كما قال المصنف.

**ترويښ وايي:-** چې تفصيل ددې شان نزول په بخاري شريف کې مطالعه کړه.

قال المصنف رحمه الله ﴿فان قال كل حلال على حرام فهو على الطعام والشرب الا ان ينوى غير ذالك﴾ او که يو سړي داسې ويل چې هر حلال شی پر ما حرام دي، نو دغه قسم د خوړلو او چښلو په شيانو پوري مربوط دي ولې چې مقصود په قسم اخستو کې خو د سړی قصد

داوي چې زه به ځان نه حانثه ومه، نو که دا قسم پر عموم باندې حمل کړو لکه ظاهر د لفظ د قسم دي نو په دې کې خو د عدم حنث تصور هم نسي کېدلی ولې چې د ساه کښلو څخه د انسان چاره نه کېږي نو ي چې ساه بې وکښل دا خو هم مباح کار و نو دی دستي حانث سو نو دده د قسم اخستلو څه فائده ده، نو ددې قسم حمل چې پر عموم ظاهر نسي کیدلی نو دا قسم مصروف دي و مطعوم او مشروب ته په سبب د عرف نو ګویا ده داسي وویل چې هر مطعوم او مشروب حلال پر ما حرام دي، نو دا قسم د ماینې سره جماعو ته نه دی شامل او که یې په نیت کې وطي د ماینې وې نو دا ایلاء ده چې حکم یې په اوائل کې ددې کتاب تېر سو فتذکر، قال فی النهایة شرح الهدایة هذا کله ظاهر الروایة والفتوٰی الیوم علی انه زوجته تبین منه بلا نیة لغلبة الاستعمال فی ذالک فان لم تکن له زوجة یحتمل علی الطعوم والمشروب فان اکل او شرب تجب علیه الکفارة لانصرافه عند عدم الزوجة الیها، او امام زفر رحمه الله دا قسم پر عموم ظاهر حمل کوي نو ځکه دی وایي چې څرنګه چې حالف د قسم څخه فارغه سو دستي حانث دی په سبب د تنفس والجواب ماقلنا آنفاً فتدبر.

قال ﴿ومن نذر مطلقا فعلیه الوفاء به﴾ او که چا نذر کړه روژه او یا ختم د قرآن او یا نور مطلقا یعنې شرط یې نه کړی ورسره ذکر مثلا داسي یې وویل لله علی ان اصوم شهراً نو پر ده باندې وفا په نذر سره واجب او لازمه ده.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان علق نذره بشرط فوجد الشرط فعلیه الوفاء بنفس النذر﴾ او که یو چا مربوط کړی ندر په یو شرط سره مثلا

داسي يې وويل چي كه زه خداى ﷻ ددې ناجوړى څخه جوړ كړم نو پر ما لس ورځي روژه نذر ده ، او هغه شرط موجود سو يعني دى د هغې ناجوړى څخه جوړ سو نو پر ده لازمه ده وفا په نفس منذر يعني لس روژې به نسي يعني په كفاره د يمين نه خلاصېږي، عنايه درويش.

قال ﴿وروى ان ابا حنفية رحمه الله رجع عن ذالك وقال اذا قال ان فعلت كذا فعلى حجة اوصوم سنة او صدقة ما املكه اجزء عن ذالك كفارة يمين وهو قول محمد رحمه الله﴾ او د امام اعظم رحمه الله څخه روايت دي يعني په غير كي د ظاهر الروايت چي امام مرحوم رجوع وكړ د مخني قول څخه، او وه يې ويل كه چا وويل كه ما فلانى كار وكړى نو پر ما حج لازم دي، او يا د يوه كال روژې لازمي دي، او يا ټوله هغه شيان چي زما په ملك دي هغه خيرات دي نو په ټولو دغو صورتو كي د قسم كفاره كافي ده او دا هم قول دي د امام محمد رحمه الله ، يعني په كفاره يمين سره د نذر د عهدې څخه خلاصېږي لكن په هدايه كي وايي چي دا هلته خلاصېږي په كفاره يمين سره چي شرط داسي شرط وي چي سړى وجود د هغه نه غواړي مثلا لكه چي ووايي كه ما د زيد سره خبري وكړې،ولي په داسي قول كي معنا د منع سته يعني زه د زيدسره خبري نه كوم او يمين خو هم د پاره د منع دي فهو بظاهره نذر وفيه معنا اليمين نو دا سړي لره اختيار دي كه د يمين وخوا ته ميل كوي يعني كفاره يمين وركوي او كه ايفا په نذر كوي، بخلاف ما علق بشرط يريده وجوده لكه يو سړى چي ووايي ان شفى الله مرضى فعلى كذا نو په دې كي ايفا بالنذر

خواه مخواه لاړه ده ولي چي معنا د يمين چي منع ده په دې ځاى كي نسته ولي چي دا قائل وجود د شفاء المرض غواړي نه منع كما لا يخفى.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ومن حلف لا يدخل بيتا فدخل الكعبة او المسجد او البيعة او الكنيسة لم يحنث﴾ او چا قسم واخستى چي زه خوني ته نه داخليږم نو د كعبې شريفي خوني ته داخل سو او يا مسجد ته داخل سو او يا بعيې ته د نصاراو داخل سو او يا كنيسه ته د يهودو داخل سو په قسم كي نه حانثيږي ولي چي لفظ د بيت په عرف كي هغې خوني ته وايي چي د شپې تېرولو د پاره جوړه سوې وي، او كعبه شريفه، مسجد شريف، بيعه، او كنيسه ددغه مطلب د پاره نه دي جوړي سوي بلكه د پاره د عبادت جوړي سوي دي كه څه هم شپه تېربدل خو په دغو مقاماتو كي ممكن دي، ه ،در.

قال ﴿ومن حلف ان لا يتكلم فقرء القرآن فى الصلوة لم يحنث﴾ او كه چا قسم واخستى چي زه به خبري نه كوم نو ده قرآن شريف ووايه په لمانځه كي نه حانثيږي ولي چي قرآن په لمانځه كي كلام نه بلل كېږي.

**درويش وايي**:- چي داغه رنګه دى حكم د تسبيح او د الله اكبر وغير ذالك مما يقرء فى الصلوة يعني نه په حانثيږي ولي په حديث مبارك كي راغلي دي ان هٰذه الصلوتنا لايصلح فيها شيئ من كلام الناس وانما هى التسبيح والتهليل وقرائة القرآن" د مصنف رحمة الله عليه د قيد څخه د فى الصلوة دا معلوميږي چي قرآن شريف خارج الصلوة ووايي حانثيږي او يا تسبيح يا تهليل يا تكبير خارج الصلوٰة ووايي نو هم په حانثيږي ولي چي

په غير کي د لمانځه دی حانث بلل کېږي، او بعض مشائخ وايي چي په مذکوره شيانو سره خارج الصلوة هم نه حانثېږي ولي چي په عرف کي زموږ ددغو شيانو ويو نکي ته متکلم نه وايي بلکه قارء القرآم يا مسبح يا مکبر يا مهلل ورته وايي وهو الصحيح کما فی الجوهره وغيرها.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن حلف لا يلبس هٰذا الثوب هو لابسه فنزعه فی الحال لم يحنث وان لبث ساعة حنث﴾ او که يوه قسم واخستی چي زه دغه جامه نه اغوندم او حال دا و چي ده اغوستې وه نو يې فی الحال وکښل نه دي حانث او که يې يو ګړی درنګ او ځنډ وکړی او بيا يې وکښل نوحانث دي، خلافا لزفر رحمه الله والدلائل فی الشروح.

پوه سه:- چي د ساعت څخه ساعت زماني متعرف نه دي مراد بلکه مراد معنا لغوي ده، يعني يو ګړی تر قسم وروسته يې شروع په نزع سره د جامې دستي ونه کړه نو حانث دي فافهم.

قال ﴿وکذالک اذا حلف لا يرکب هٰذه الدابة وهو راکبها فنزل فی الحال لم يحنث وان لبث ساعة حنث﴾ او داغه رنګه حکم دي چي سړی قسم واخلي چي پر دې دابه به نه سپرېږم او فی الحاله ځندي راکښته سو نه حانثېږي، او که يې يو ساعت درنګ وکی په کښته کېدو کي بيا نو حانث دي، لان البقاء علی اللبس فی المسئلۃ الاولی والبقاء علی الرکوب فی المسئلة الثانية لبس ورکوب، وقد حلف علی نفی اللبس والرکوب.

قال ﴿ومن حلف لا يدخل هٰذه الدار وهو فيها لم يحنث بالقعود فيها حتٰی يخرج ثم يدخل﴾ او که چا قسم واخستی چي زه

په دا سرای تـه نـه داخلېږم او دی پـه هغـه سرای کـې و نـه حانـثېږي چـې کښېني په هغه سرای کي تر هغه وخته پوري چي دی د سرای څخه راوځي او بېرته داخلېږي، نو کې داغسي وکړه نو حانث دي.

پوهه: - چي قياس خو دادي چي په قعود سره دی حانث سي لان الدوام على الدخـول كابـتداء الدخـول وقـد حلـف عـنه، والدلـيل على المسئلة المتن ان الدخول فى الدار نوى امر دى لا دوام لـه لانه انفصال من الخارج الى الداخل، ه ، در.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومـن حلف لا يدخل الدار فدخل دارا خرابا لم يحنث﴾ كه چا قسم واخستی چي زه دار ته نه داخلېږم يعني تعبير د دار يې نه وكړی بلكه جنس دار يې ذكر كړی، نو دا سړی داخل سو يو خراب سرای تـه يعني د چـا د استوګني صالح نـه و نو نـه حانـثېږي ولـي قسمونه محمـول پر عادات دي، نومراد دده په يمين كي معتدبه مراد دي چي خلك پكښي اوسېږي يعني صالح د اوسېدو وي، او خرابه سرای خو د اوسېدو نـه دی، مثال ددې دادي چي يو سړی قسم واخلي چي كه زه قميص واغوندم اخر ده قميص لنګ كړی نو نه حانثېږي ولي مراد لبس معتاد دي، جوهره.

قال ﴿ومـن حلف لايدخل هٰذه الدار فدخلها بعد ما انهدمت وصارت صحراء حنث﴾ او كه چا قسم واخستی چي زه دغه معين سرای ته نه داخلېږم، نو دی هغه معين سرای ته په داسي وخت كي داخل سو چي هغه سرای نړېدلی و او صرف صحرا وه نو دی حانث دي، ولي ده چي بقعه د سرای معلومه كړه نو قسم دده په بقعه پوري د هغه تعلق لري

او نوم د دار يې هم فى الجمله باقى دي، مثلا خلك وايي چي دا ځاى د فلاني د سراى دى فيحنث.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن حلف لايدخل هذه البيت فدخل بعد ما انهدم لم يحنث﴾ او كه چا قسم واخستى چي زه نه ننوزم دغي خوني ته نو دى هغه ځاى ته د خوني وروسته تر نړېدو داخل سو يعني چي صحرا ګرځېدلې وه نه حانثېږي، ولي چي بيت هغه ځاى ته وايي چي شپې پكښي تېرېږي په صحرا كي عادتاً شپې نه تېرېږي، او كه يې دېوالونه ولاړ وه صرف بام يې نړېدلى و بيا حانثېږي ولي چي صالح د شپې تېرېدو دي كذا فى الهدايه.

قال ﴿ومن حلف ان لايكلم زوجة فلان فطلقها ثم كلمها حنث﴾ او كه چا قسم واخستى چي زه د فلانې د ماينې سره خبري نه كوم، نو فلاني هغه ماينه طلاقه كړه وروسته حالف خبري ورسره وكړې نو دى حانثېږي په دغو خبرو لكن دا حكم هلته دي چي دا قسم پر يوه معينه ماينه چي اشاره يې هم ورته وكړه قسم واخستى ولي چي د زوجه فلان نوم پس له طلاقه هم پردې باقي دي اګرچي طلاق بائن يې وركړى وي وسيئاتي دليله الاخر.

قال ﴿ومن حلف ان لا يكلم عبد فلان او لا يدخل دار فلان فباع فلان عبده او داره ثم كلم العبد او دخل الدار لم يحنث﴾ او كه چا قسم واخستى پر دې چي زه به خبري نه كوم د فلاني د مريي سره، او يا به نه داخلېږم سراى ته د فلاني نو هغه فلاني مريي خرڅ كړى او يا

بې سرای خرڅ کړی، وروسته حالف خبري وکړي د هغه مريي سره او يا داخل سو وهغه سرای ته نو نه دی حانث.

**پوه سه**:- چي دا قول د امام اعظم رحمه الله او امام ابو يوسف رحمه الله دی، او امام محمد رحمه الله وايي چي حانثېږي، دليل د قول د شيخينو دادي چي مريي او يا سرای د سړی مبغوض عادتاً نه وي نو ګويا ده داسي وويل چي مادام ملك فلان باق فيهما وقد خرجا عن ملكه بالبيع فلم يبق المقصود بالحلف فلا يحنث، بخلاف مسئلة الزوجة فلان لان الزوجة يقصد بالمعادات والموالات بالذات والاضافة الى الزوج انما هى لتعريفها لالان ذات الزوج مبغوضه فاذا طلق الزوج الزوجة المذكورة فذات الزوجة المبغوضة للحالف باقية فيحنث بكلامها.

**درويش وايي**:- چي چونكه په دليل كي د قول د امام محمد رحمه الله طول و نو ځكه ما نقل نه كړی، نو هدايه يا نوري شرحي د قدوري مطالعه كړی ان شئت.

قال ﴿وان حلف لا يكلم صاحب هٰذا الطيلسان فباعه ثم كلمه حنث﴾ او كه سړي قسم واخستی چي زه به د صاحب سره ددغه كمر بند خبري نه كوم، نو هغه سړي دغه كمر بند خرڅ كړی او حالف وروسته خبري ورسره وكړي نو دی حانث دي، ولي چي طيلسان خو د بغض شی نه دي نو اصلي بغض دده خو د صاحب سره د كمر بند دي، نو پسله خرڅېدو څخه د كمر بند مبغوض دده باقي دي نو ګويا ده داسي په اشاره سره وويل چي قسم په خدای جل جلاله كه زه ددغه سړي سره خبري وكړم.

قال ﴿وكذالك اذا حلف ان لا يكلم هٰذه الشاب فكلمه بعد ماصار شيخا حنث﴾ او داغسي حکم دی که يو سړي قسم واخستی چي زه ددغه ځوان سره خبري نه کوم، نو بيا حالف دده سره خبري وکړې پس له دې څخه چي هغه ځوان سپين ږری سو نو دغه حالف حانث دي، ولي چي حلف په مشار اليه پوري مربوط دي ولي وصف چي شاب دی په مشار اليه کي لغو دی او مشار اليه خو پس له سپين ږر توبه هم باقي دي فيحنثه بتكلمه، هدايه، درويش.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان حلف لا ياكل لحم هٰذه الحمل فصار كبشا فاكله حنث﴾ او که چا قسم واخستی چي زه ددغه وري غوښي نه خورم نو هغه وری مړ سو نو ده يې غوښي وخوړې نوحانث دي ولي چي يمين قانونا تعلق په مشار اليه پوري لري، او وصف د حمل يې لغو دي ولي چي د حمل او وري غوښي د کبش تر غوښو بالا دي او مفيدي د بدن د پاره دي نو حمل والي باعث د قسم نه دي.

قال ﴿وان حلف ان لا ياكل من هٰذه النخلة فهو على ثمرها﴾ او که چا قسم واخستی چي زه ددې درختي څخه د خورما خورك نه کوم نو ددې قسم څخه مراد مېوه د خورما ده.

**فائده**:- هره درخته چي مېوه داره وي لکه د انګورو تاك يا د سېبو درخته وامثال ذالك چي سړی قسم ځندي واخلي قسم يې په مېوه پوري مربوط دي ولي اګرچي حالف يمين مضاف کی ودرختي ته لکن ذات د رختي خو د خوراك شی نه دي نو ځکه يې حلف راجع وماخرج منها ته دي چي مېوه د هغې درختي ده، او که درخته مېوه والا نه وه مثلا سړي قسم

واخستى د خورك د ولي يا د ناجو وغير ذالك نو بيا دغه قسم پر قيمت د هغې درختي واقع كيږي.

پوهنه:- چي اراده د مېوې يا د قيمت مجاز دي د قبيلې څخه د ذكر د سبب او اراده د مسبب ده.

مسئله:- كه سړى يعني حالف د هغې درختي لرګى ميده كړى او وېخوړى نه حانثيږي لانه حقيقة مهجورة قاله الفقهاء.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ومن حلف ان لا ياكل من هذا البسر فصار رطبا فاكله لم يحنث وان حلف لا ياكل بسرا فاكل رطبا لم يحنث وان حلف لا ياكل رطبا فاكل بسرا مذنبا حنث عند ابى حنيفة رحمة الله عليه﴾ او كه چا قسم واخستى چي زه به خوراك نه كوم ددې غوره خورما څخه نو هغه بسر پخه خورما سوه او حالف وخوړه نه حانثيږي، ولي يمين چي تعلق ونسي په يو نامه سره نو په بقاء د هغه نامه يمين باقي دي او په زوال د هغه نامه زائليږي او د مابين څخه ختم كيږي، نو دلته خو ده قسم اخستى دي پر نامه د بسر هغه نوم خو اوس زائل سو د رطب په نوم سو نو ځكه حالف حانث نه دي.

پوهنه:- چي صاحب عنايه يو قانون كلي بيان كړى دى چي قسم چي تعلق په يو ذات پوري ونسي او هغه ذات موصوف په يوه وصف سره وي او هغه وصف سبب د قسم ګرځېدى سي نو يمين په هغه وصف پوري مربوط دي چي هغه وصف بدل سي نو حنث نسته لكه په مانحن فيه چي حالف اشاره وكړه وذات ته د خرما چي موصوف په بسريت سره دي، او وصف د بسريت داغي د قسم هم ګرځېداى سي ولي د بعض خلګو تروه مېوه نه ده

خوښه، او كه چا قسم واخستى چي زه نه خورم بسر او بيا يې رطب وخوړى يعني پخه خورما نه دى حانث.

پوښتنه:- ددې مسئلې او د مخكنۍ مسئلې څه فرق دي ؟

ځواب:- په مخكنۍ مسئله كي بسر معرفه او مشار اليه و او په دې مسئله كي نكره او غير مشار اليه دي، ودليل هٰذه المسئلۍ ايضا دليل الاولى شبراً بشبر فتذكروا وتامل. او كه سړى قسم واخستى چي زه به رطب نه خورم يعنې پخه خورما او بيا يې بسر وخوړه مذنبا يعني چي پختيا ته نژدې وه خو تر اوسه لاتريو والى د بسر پكښې و حانثېږي، لكن په نېز د امام اعظم رحمه الله چي امام محمد رحمه الله يې هم په مسئله كي همراه دي، او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي نه حانثېږي ولي چي ددې خورما نوم خو رطب نه دي په عرف كي بلكه نوم يې بسر مذنب دي، او طرفين وايي چي په بسر مذنب كي معنا د رطب شته.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن حلف لا ياكل لحما فاكل لحم سمك لا يحنث﴾ او كه چا قسم واخستى چي زه به غوښې نه خورم، اوبيا يې د ماهي غوښې وخوړلې نه حانثېږي.

سوال:- د ماهي غوښو ته په قرآن مجيد كي لحم ويل سوي دي، قال جل سلطانه" ومن كل تاكلون لحما طريا" نو بيا ولي دغه حالف په خوړلو د ماهي د غوښو نه حانثېږي؟

ځواب:- كما قال صاحب الهدايه رحمه الله چي د لحم حقيقت هغه غوښې دي چي د وينو څخه پيدا كېږي او سمك وينه نه لري ولي چي وينه لرونكي

شی په اوبو کي استوګنه نه سي کولی، او که يې وينه درلودی نو بې ذبح ته حاجت درلودی.

قال ﴿ولو حلف لا يشرب من دجلة فشرب منها باناءٍ لم يحنث حتى يكرع منها كرعاً عند ابی حنيفة رحمه الله﴾ او که چا قسم واخستی چي زه به د دجلې څخه اوبه نه څښم، او بيا ده اوبه د دجلې څخه په لوښي کي اوبه راواخستې او وې څښلې نه حانثېږي تر هغو چي په کرعه يې ونه څښي.

**پښوه ښه**:- چي کرعه داده چي خوله پر اوبو کښېږدي او وې څښي نه يې په لوښي کي راواخلي او نه په غبرګه کي لکه عادت د بعضو باديه نشينانو چي دی په نېز د امام اعظم رحمه الله.

**پوه ښه**:- چي کم حقيقت چي مستعمل وي که څه هم مجاز پر ډېر وي په استعال نو امام اعظم رحمه الله هغه لفظ پر حقيقت حمل کوي، لانها الاصل، او په نېز د يارانو مجاز متعارف اولی دي تر حقيقت نادره او دا هم مذهب دي د ائمه ثلاثه رحمهم الله، په مانحن فيه معنا حقيقي د من دجلة داده چي د شرب مبدء يې دجله وي او دا معنا مستعمل هم ده لکه د بعض صحرايانو که څه هم نادره ده او معنا مجازي داده چي اوبه د دجلې وڅښي يا په غبرګه او يا په لوښي سره او دا معنا شائع ده، نو د امام اعظم رحمه الله په نيز په کرعه سره حانثېږي فقط، په معنا مجازي نه حانثېږي، او د يارانو په نيز په معنا مجازي حانثېږي نه په کرعه، او بعض فقهاء په دې قسم کي عموم مجاز کوي يعني مراد د حالف څښل د اوبو د دجلې دي په هر ډول چي وي.

قال ﴿ومن حلف ان لا یشرب من ماء دجلت فشرب منها باناء حنث﴾ او که چا قسم واخستی چي زه به اوبه د دجلې نه څښم او بیا یې په لوښي کي وڅښلې حانث دي، ولي چي د لوښي اوبه خو هم د دجلې اوبه دي.

**فائده**:- چي حنث په دې صورت کي په اتفاق دي، او په صورت کي د کرعي هم حانثېږي کما لا یخفی.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن حلف ان لا یاکل من هٰذه الحنطة فاکل من خبزها لم یحنث﴾ او که چا قسم واخستی چي زه ددې غنمو څخه خورك نه کوم، نو په ډوډۍ خوړلو د هغو غنمو نه حانثیږي.

**فائده**:- چي دا مذهب دی د امام اعظم رحمه الله ولي دی حقیقت چي مستعملوي تر مجاز اولی دی، او خوّدي غنم خو هم خوړل کېږي په عرف کي یعني چي یا په اوبو کي وه ایشول سي چي په پښتو کې کوچه بولي او په لپې یې خولې ته اچوي او خوري یې، اویا غنم پر تبخي پر اور باندي کړي چي په پښتو کي یې نینې بولي او په مزه مزه یې په کپه خوري، او ډوډۍ چي د غنمو څخه پیدا سي هغه خو معنا مجازي د غنمو ده، اویاران وایي چي په کوچه، په نینو او هم په ډوډۍ د هغو غنمو حانثېږي، او دې ته په اصطلاح د اصول فقه عموم مجاز وایي، وقد صح قول الصاحبین فی بعض الفتاوٰی، لکن دا اختلاف هلته دي چي حالف نیت د کوچې او نینو نه لري. او که یې د هغو نیت و بیا په اجماع سره په خوراك د ډوډۍ د هغو غنمو نه حانثېږي.

قال ﴿ولو حلف ان لا یاکل من هٰذه الدقیق فاکل من خبزه حنث﴾ او که چا قسم واخستی چي زه به ددغو وړو څخه خورك نه کوم، نو یې ډوډۍ د هغو وړو وخوړه حانث دي یعني په اتفاق د امام اعظم رحمه الله او یارانو ولې خورك د خودي وړو هیڅ معتاد نه دي بلکه یو اندازه ضرر لري نو ګویا حقیقت یې متعذر دي نو خود مجاز ته تګ کېږي چي ډوډۍ ده کما تقرر فی اصول الفقه، حتٰی که یو سړی په تکلیف سره د هغو وړو څخه خورك وکړی هم نه حانثېږي.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولو استفه کما هو لم یحنث﴾ او که یې کپه کړه هغه وړه نه حانثېږي، او بعض مشائخ وایي چي په خوړلو د عین وړو هم حانثېږي، لکونه حقیقت وان لم تکن مستعملة لکن په عنایه کي وایي چي صحیح داده چي نه حانثېږي لکونه حقیقة مهجورة.

**ژباړن وايي**:- چي فتوٰی پر قول د عنایه ده.

قال ﴿وان حلف ان لا یتکلم فلانا فکلمه وهو بیحث یسمع الا انه قائم حنث﴾ او که چا قسم واخستی چي دی به خبري نه کوي د فلانی سره نو ده خبري ورته وکړي په داسي حال کي چي هغه سړی په داسي ځای کي و یعني نژدې و چي دده خبري یې اورېدلي وای مګر هغه بیده و یعني نه یې واورېدي نو دی حانث دي.

**فائده**:- دا مذکوره مذهب دی د قدوري رحمه الله او ددې تصحیح امام سرخسي رحمه الله هم کړې ده، دلیل یې دادی چي ده خو خبري ورته وکړې او د هغه غوږو ته هم ورسېدلې لکن په پوه نه سو په سبب د خوب، او د مبسوط

مذهب دادی چي حالف پس له خبرو هغه نائم ويښ کړي هو المختار اکثر مشائخنا رحمهم الله.

قال فی مجمع الانهر وهو المختار، وفی التحفی وهو الصحيح، دليل يې دادي چي هغه سړی چي ويښ نه سي نو داسي مثال يې دی لکه چي حالف مذکور د لېري ځخه د هغه سړی سره خبري کوي او هغه يې اواز نه اوري او ويښ وي.

قال ﴿وان حلف ان لا يکلمه الا باذنه فاذن له ولم يعلم بالاذن حتی کلمه حنث﴾ او که چا قسم واخستی چي دی به د فلاني سره خبري نه کوي، مګر که فلانی ماته اجازه د خبرو کولو راکړي، نو فلاني د خبرو کولو اجازه ورکړه لکن حالف په دغه اجازه خبرنه و يعني د حالف په غياب کې اجازه وکړې وه نو حالف سره د عدم العلم بالاجازه دده سره خبري وکړې نو حالف حانث ګرځي.

پښتو مسئله:- چي دا مذهب دی د امام اعظم او دا امام محمد رحمهم الله او امام ابو يوسف رحمه الله وايي چي حالف نه حانثېږي، والدلائل الفريقين فی الهدايه وشرح العنايه عليها ولطولها ودقتها وعدم لياقتها لحال المبتدين لم اوردها.

قال ﴿واذا استحلف الوالی رجلا لعلمه بکل داعر دخل البلد فهو علی حال ولايته خاصة﴾ او که قسم ورکړی يو والي چي په اصطلاح د پاکستان يې ګورنر بولي يو سړي ته يعني چي په جاسوسي يې مقرر کړی و او پر دې باندي چي ته به ما خبروي په هر مفسد دهشت ګرد او غله، او خبيث سړي چي ښار ته داخل سي، يعني هغه سړي هم داغسي

لوړه وکړه نو دا قسم محمول پر حال د ولايت د والي دي، ولي چي د والي غرض دفع د شر د داعر د ښار او د ځان څخه، نو چي ولايت دده ختم سي بيا نو دی ذمه دار د ښار نه دی او نه داعر په ده کار لري.

پوره خبره:- چي ختم د ولايت دده په موت دی او يا په موقوفه کولو دده د حکومت د خوا څخه فی الظاهر الروايت، او که هغه والي يووار معزول سو نو يمين خو ختم سو نو که والي مذکور بېرته والي سو قسم نه راګرځي، جوهر.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ومن حلف ان لا يركب دابة فلان فركب دابة عبده الماذون لم يحنث﴾ او که چا قسم واخستی چي زه به پر دابه که آس وي او که خر، د فلاني سړي نه سپرېږم، نو حالف پر دابه د مريي د فلا ني چي هغه مريي ماذون بالتجارت و سپور سو په قسم کي نه حانثېږي، او دا هم په هغه صورت کي چي د حالف رکوبه د مريي د دابې په نيت نه وي، او که يې رکوبه د مريي د دابې په نيت کي وه نو بيا حانث دي.

فائده:- دا مذهب دی د امام اعظم رحمة الله عليه.

درويش وايي:- چي په دې مسئله کي ډېر تفصيل سته چي په هدايه او په شرحو کي د هدايې موجود دي.

قال ﴿ومن حلف ان لا يدخل هذه الدار فوقف على سطحها او دخل دهليزها حانث﴾ او که چا قسم واخستی چي دی به نه داخلېږي دغه سرای ته، نو دی ودرېدی پر بام د هغه سرای، او يا د هغه سرای ودالان ته داخل سو نو دا حالف حانث سو، ولي چي يو څوك چي د يو سرای پر بام ولاړ وي په عرف کي هغه سړی داخل الدار بلل کېږي وبناء الايمان على

العرف. لکن په دهلېز کي چي په اصطلاح کې کوټه يا بيټك بولي تفصيل دادي که دا کوټه لويه وه چي شپه سړي پکښي تېرولی سوی خو حانثېږي ولي داسي کوټې په قريو کي د مېلمنو د پاره وي، او په ښارو کي د مزدور يا دپيردار د پاره وي نو داخل د هغې کوټې داخل د سرایٔ بولل کېږي عرفاً. او که د شپې د تېرېدو نه وه نو د هغې داخل نه دی حانث بلکه دا کوټه صرف د يوه سړي د ناستي د پاره ده.

**فائده**:- دا تفصيل هلته دی که دهلېز د ننه د سرای د لويي دروازې نه وي، او که په داخل کي د لوي دروازې د سرای وه بيا حتما حانث دي که د هلېز لوي وي او که کوچنی کما لايخفی کذا فی الجوهرة والزياة من الفقير، او دليل د اولي مسئلې اي وقوف علی السطح الدار، دادي چي سطح جزء د دار ده. ولي چي دار نوم دی د هغه ځای چي لوي دېوال پر راګرځېدلی وي والسطح منه لان العلو والسفل کلاهما مما اهات به الجدار. عنايه. او ددې سببه که معتکف و بام ته د مسجد وخېژي اعتکاف يې نه فاسدېږي هدايه. لکن هذا عند المتقدمين خلافا للمتاخرين والتفصيل فی در المختار وحاشية الطحطاوي عليه ترکته بحال الطول.

قال ﴿وان وقف فی طاق الباب بحيث اذا اغلق الباب کان خارجا لم يحنث﴾ او که چېري ودرېدی حالف په تاخچه کي د دروازې په داسي تاخچه کي چي د سرای دروازه به وتړه سوه طاق د باندي پاته کېدی نو حالف نه دی حانث. ولي چي دا دروازه د پاره د ساتلو د سرای وما فيها ده نو خارج الباب ده د سرای جزء نه ده.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ومن حلف ان لاياكل الشواء فهو على اللحم دون البازنجان والجزر﴾ او كه يو څا لوړه وكړه چي دی به نه خوري په غوړو كي سور سوی شی، نو دا قسم دده محمول دي پر سرې كړي غوښو باندي چي غورمه يې بولي نه پر سرو سوو بانجنړو يا جروزو ولي په نېز د مطلق ذكر د شو الحم مشوي مرادېږي په عرف كي، اما كه په نيت كي د حالف سرې كړي اكۍ وې يا مشوي بانجنړ وه بيا د هغو په خوراك حانثېږي، كذا فى الهدايه.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ومن حلف ان لا ياكل الطبيخ فهو على ما يطبخ من اللحم﴾ او كه څا قسم واخستى چي دی به پخ كړی شی نه خوري، نو دا قسم يې واقع كېږي پر پخ كړو غښو، اعتباراً للعرف وفى القياس يحنث فى اللحم وغيره من المطبوخات، دليل د مسئلې د متن دادي چي د مطلق مطبوخ على النار خو اراده ممكنه نه ده ولي چي جوشانده جلاب خو هم پر اور پخېږي او د هغو په خوراك خو اتفاقاً نه حانثېږي، نو متعارف مطبوخ ته يمين راجع دی يعني چي په اوبو كي پر اور پخې سي چي غوښي دي، مجمه الانهر.

قال ﴿ومن حلف ان لاياكل الرؤس فيمينه على ما يكبسه فى التنانير ويباع فى المصر﴾ او كه څا قسم واخستى چي دی به نه خوري سرونه، نو دا قسم د هغو سرو د خوړلو څخه دی چي په تنور كي داخلېږي او هلته پخېږي لكه د پسو سرونه، د غويو سرونه، او يا د سېرليانو سرونه، چي په ښار كي خرڅېږي، ولي د ملخ سر كه څه هم سر حقيقى دی مګر هغه نه په تنور كي داخلېږي او نه په بازار كي خرڅېږي، نو چي د

حقيقت اراده متعذره ده نو مراد مجاز متعرف دی چي مذكوره سرونه دی كذا فی العنايه.

**پوښته**:- چي په جامع صغير كي وايي چي د مذكوره قسم څخه مراد سرونه د پسو او د غويو دي، وغيرهما عند ابي حنيفه رحمه الله او ياران وايي چي قسم يې واقع دی پر سرو د پسو او بزو فقط انتهی، صاحب هدايه وايي چي دا اختلاف د دليل د لاري نه دی بلكه اختلاف د عصر او رواج دی، يعني په زمانه كي د امام اعظم رحمه الله رواج د بقراتو او د اغنامو د سرو دوارو وو، او په عصر كي د يارانو عرف او رواج خاص په غنمو كي و، ففی كل زمان يعتبر عرف ذالك الزمان، كذا فی الهدايه، والمختصر.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن حلف ان لا ياكل الخبز فيمينه على ما يعتاد اهل البلد اكله وخبزا فان اكل خبز القطائف او خبز الارز بالعراق لم يحنث﴾ او كه چا قسم واخستی چي دی به ډوډۍ نه خوري، نو دا قسم دده محمول دی پر هغه ډوډۍ چي عادت يې لري اهل د ښار خوراك د هغې ډوډۍ، والمراد البلد الذی فيه الحالف نو څكه وايي چي كه دغه حالف د بادامو ډوډۍ وخوړل او يا د ورجو ډوډۍ په عراق كي نه حانثيږي، ولي چي دغه دوه قسمه ډوډۍ په عراق كي رواج نه ده، بلكه خبز الحنطه والشعير هو المعتاد فی اغلب البلدان حتى كه دغه حالف په طبرستان كي و او يا بل داسي ځای چي دغه قسم ډوډۍ ددوي خورك وه بيا حانثيږي، هدايه، او كه په هلمند كي و لكه په غلمينه ډوډۍ په سوړ قندهار په ښار كي و مثلاً يوازي په غلمينه ډوډۍ حانثيږي.

فائده:- عادات د خلګو په مرور د زمانو بدلېږي والمذكور بيان المعتاد فى الزمان القديم.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن حلف ان لا يبيع او لا يشترى او لا يواجر فوكل من فعل ذالك لم يحنث﴾ او كه چا سوګند وكړى چي زه به شى نه خرخوم او يا يې نه رانسم، او يا مثلا سراى به په كرايه نه وركوم، نو بيايې بل سړى وكيل كړى په بيع يا په شرا يا اجاره، او وكيل دغه كارونه وكړه نو حالف نه دى حانث، ولي چي ددې عقودو تعلق په فاعل پوري دى نه په امر پوري، مثلا تسليم د مبيعې او قبض د ثمن وغيرهما من احكام هٰذه العقود كما فى كتب الفقه، در، ه.

قال ﴿ومن حلف لا يجلس على الارض فجلس على بساط او على حصير لم يحنث﴾ او كه چا قسم واخستى چي زه به پر مځكه نه كښېنم نودى كښېنستى پر كمبله او يا پر بوريا وغيره نو دى نه دى حانث، ولي چي جالس پر مځكه عرفا هغه سړى بولي چي دده او د مځكي تر منځ حائل نه وي، او دلته خو كمبله يا بوريا حائل ده.

فائده:- دا قسم احتمال د مؤبد لري او د موقت هم، لكن د مؤبد په صورت كي عدم حنث ډېر نادر دى، او په موقت كي يې برء يعني عدم حنث ممكن دى.

پوښتنه:- چي اغوستلي كالي د حالف تبع دده دى عرفا نو هغه حائل نه بلل كېږي.

قال ﴿ومن حلف ان لا يجلس على سرير فجلس على سرير فوقه بساط حنث﴾ او كه چا قسم وكړى چي دى به پر چار پائي نه كښېني، نو دى پر داسي چارپائي كښېنستى چي پر هغه باندي مثلا سترنجي وغيره اواره وه نو دى حانث دى ولي چي په عرف كي دغه سړي ته جالس السرير وايي وقد مر ان مبنى الايمان على العرف العام.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان جعل فوقه سرير آخر فجلس عليه لم يحنث﴾ او كه يې پر هغه چار پائي بله چار پائي سربېره كښېښول او پر هغه دوهمه چار پائي دى كښېنستى نو نه حانثېږي.

پوهه سه:- چي دا عدم حنث په هغه صورت كي دى چي چار پائي معرفه كړي مثلا ووايي چي على هٰذا السرير، او كه چېري سرير پر خپل نكارت پاته وي نو بيا حانثېږي ولي پر مطلق سرير خوكښېنستى، ج، در.

قال ﴿وان حلف ان لا ينام على فراش فنام عليه وفوقوه قرام حنث﴾ او كه سړي لوړه وكړه چي دى به نه بيدېږي پر فراش، يعني پر نالى ياكور بچه، نو دى بيده سو پر هغه فراش چي سربېره پر هغه فراش رجاعي وه نو حانث دى ولي چي رجاعي تبع د نالى ده نو ګويا پر نالى بيده سو.

فائده:- پوه سه:- چي د فراش څخه فراش معين دى يعني پر دغه نالى، قال في العنايه بقرينه قوله وان جعل فوقه فراشا اخر لا يحنث، ولي كه مراد مطلق فراش وايي نو په صورت ثاني كي به هم حانث واى.

قال ﴿وان جعل فوقه فراشا اخر فنام عليه لم يحنث﴾ او كه سربېره پر هغه معينې نالى بله نالي اواره كړه او پر هغه سربېره نالى بيده

سو نه حانثيږي ولي چي دوهمه نالي خو مستقله نالي ده تبع د هغه بلي نالي نه ده لان الشي لا يتبع مثله، بخلاف القرام لانه تبع لا محالة.

قال ﴿ومن حلف بيمين وقال ان شاء الله متصلا بيمينه فلا حنث عليه﴾ او كه سړي قسم واخستى يعني هر قسم چي و كه پر نفي و او كه پر اثبات وي او متصل په قسم پسي داسي ووايي ان شاء الله نو بيا هيڅ حنث پر ده نسته يعني كه څه هم هغه كار وكړي چي ده قسم ځندي اخستى و ولي ان شاء الله آه، چي پر هر كلام داخله سي د كلام حكم پورته كوي.

در رسول الله ﷺ څخه روايت دى من حلف على يمين فقال ان شاء الله فقد برء بيمينه.

**دروېشي وايي**:- چي ددې مسئلې سِر او راز دادى چي په علم اصول فقه او په نحو كي وايي چي تر هغو پوري چي د شرط تحقق او وجود نه سي معلوم جزاء نه واقع كېږي، مثلا سړي ماينې ته وويل ان خرجت من الدار فانت طالق" نو تر هغو پوري چي خروج د دار څخه متحقق نه سي طلاق نه واقع كېږي، نو بنا على هٰذا په دې يمين چي سړى ان شاء الله تعالى وويل خو د خپل حنث په مشيت او اراده پوري د خداى ﷻ مربوط او وجود د مشيت آلهى جل سلطانه خو نه دى معلوم نو حنث هم نسته، فوائد ان شاء الله وشرط د ويلو په رفع د حكم.

**پوښتنه**:- چي شرط د ان شاء الله ويلو اتصال دى په كلام سابق پوري، ويدل عليه الحديث المذكور، ولي په حديث مذكور كي د فقال لفظ راغلى دي او په ټولو كتابو كي دا وايي چي فاء عاطفه د پاره د تعقيب بلا فصل ده، او د تعقيب معنا دا نه ده چي د كلام سابق او ان شاء الله تر منځ به

متكلم ساه لانه كاږي بلكه معنا يې داده چي تاخير په ويلو كي د ان شاء الله نه كوي مثلا په خورك يا نورو خبرو او كارونو ځان نه اخته كوي.

**فوائد**:- قسم اخستل يا مايني ته طلاق وركول يا مريي ته حر ويل يا د چا سره وعده كول چي وفا بالوعد واجبه ده، نو دا ټوله په ان شاء الله په شرط مذكوره چي مقيد سي حكم نه پر مرتب كېږي، يعني قسم نه واقع كېږي او طلاق دمايني نه واقع كېږي، او د مريي ازادي او حريت هم نه واقع كېږي، او په وعده خلافي كي نه ګناه كاره كېږي الى غير ذالك من الفوائد.

**درويش وايي**:- چي كاشكي خلګو دغه مباركه كلمه په خپلو دغو خبرو كي متصل ويلای د ډېرو بلاوو څخه به خلاص وای كما ذكرت بعض امثلتها.

**د خندا ور حكايت**:- وايي چي يوه ورځ يوه سړی د خره د رانيولو د پاره د كوره څخه سهار وختي د ګنج وخواته روپۍ په جېب كي واچولې روان سو يو بل سړي په مخه ورغلی، ورته وې ويل چي فلانيه دا سهار وختي چېري روان يې؟ ده ورته وويل چي ځم ګنج ته خر رانسم، هغه بل سړی ورته وويل چي ان شاء الله به دي ويلې وای، خره رانيونكي ورته وويل چي د ان شاء الله ويلو څه ضرورت دي روپۍ مي دادي په جېب كي دي او خر په ګنج كي دی، خير خو سړی ګنج ته ورسېدی يو خر يې بيع كړی بل خر يې بيع كړی اخر چي يو خر يې خوښ سو او قيمت يې سره فيصله كړی، ده چي جېب ته لاس كړی چي خاوند ته د خره پيسې وركړي روپۍ كيسه بر وړي وې، نو سړی ناامېده د ګنج څخه د كور پر خوا راروان سو پر لاري بيا يو بل سړی په مخه ورغلی ورته يې وويل چي فلانيه دا دونده وختي چېري

تللی وي؟ ده ورتــه وویــل چــي د کــوره را ووتـم ان شــاء الله روبــی مــي راواخستې ان شاء الله ما ویل خر به رانسم ان شـاء الله روپی کیسه بر راخخه یو وړې ان شاء الله اوس بېرته کور ته ځم ان شاء الله.

نو مـوږ بـاید پوه سو چي داسي ان شاء الله په درد نـه خوري بلکه قبل الفعل باید سړی ان شاء الله ووایي او تفویض د کار کولو و خدای ﷻ ته وکړي.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان حلف ان لا يئتينه ان استطاع فهٰذا على استطاعة الصحة دون القدرة﴾ او که چا قسم واخستی یعني په داسي صورت کي چي يو چا وده ته داسي وويل چي ته به زما کره راځې مثلا، نو ده په قسم ورته وويل چي زه به ستا کره درځم که مي په طاقت پوره وه نو دا قسم دده محمول دی پر طاقت د صحت یعني چي په بدن جوړ وي، نو که په بدن جوړ او روغ و او نه ورغلی په قسم کې حانث دی، او قدرت نه دی مراد چي ټوله اسباب د تګ بې برابر وي، وتفصيل القدرة المذكورة فى شرح العقائد النسفية.

قـال المصـنف رحمه الله ﴿وان حلـف ان لا يكلمـه حيـنا او زمانـا او الحيـن او الزمان فهو على ستة اشهر وكذالك الد هر عند ابى يوسف ومحمد رحمهم الله تعالى﴾ او که چا لوړه وکړه چي زه به د فلاني سره خبري نه کوم حيناً او زماناً یعني حین او زمان يې نکره ذکر کړه او يا الحين يا الزمان یعني الزمان والحين يې معرفه ذکر کړه نو دا لوړه دده پر شپږ میاشتي واقع کېږي، یعني که په د ننه کي د شپږو میاشتو يې

خبري ورسره وکړي نو حانث سو والالا، او داغه رنګه حکم دی د لفظ د الدهر په نېز د امام ابو يوسف او امام محمد رحمهم الله.

**درويش وايي**:- چي په مذکوره مسئله کي ډېر تفصيل بيان دی چي په هدايه، عنايه او شرح الاقطع کي ذکر دی که درويش هغه تفصيل رانقل کړي يوه ورقه به ډکه سي سره د هغه چي مبتديان نر او ښځي به هيڅ فائده پروا نه خلي، او پوه کسانو ته مشکله نه ده چي شروح مذکوره مطالعه کړي.

قال ﴿ولو حلف ان الا يوكلمه اياما فهو على ثلثة ايام﴾ او که چا سوګند ياد کي چي دی به د چا سره خبري نه کوي اياما يعني نکره لفظ يې ووايه، نو هغه قسم پر درو ورځو محمول دی اعتباراً لاقل الجمع.

**پوه سه**:- چي که سړی داسي وويل چي اياما کثيره، امام اعظم رحمة الله عليه دا محمول بولي پر لسو ورځو، او ياران يې محمول بولي ديوې هفتې پر ورځو

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ولو حلف ان لا يكلمه الايام فهو على عشرة ايام عند ابى حنيفة رحمة الله عليه وقال ابو يو سف ومحمد رحمهم الله على ايام اسبوع﴾ او که چا قسم واخستی چي دی به د فلاني سره خبري نه کوي الايام يعني معرفه بالام لفظ يې ووايه، نو قسم يې محمول دی پر لسو ورځو په نيز د امام اعظم رحمة الله عليه، او په نېز د يارانو د يوې هفتې پر ورځو، والتفصيل الدلائل للمذهبين فى العنايه.

**درويش وايي**:- چي فرق دمعرفې او نکرې په عربي ژبه پوري مخصوص دی کما لايخفى.

قال ﴿ولو حلف ان لا يكلمه الشهور فهو على عشرة اشهر عند ابى حنيفة رحمة الله عليه وقالا ابو يوسف ومحمد رحمهما الله فهو على اثنى عشر شهراً﴾ او كه يو چا قسم واخستى چي دى به خبري نه كوي د فلاني سره په مياشتو يعني په صيغه د جمعي. نو په نيز د امام اعظم رحمة الله عليه پر لس مياشتي باندي محمول دى، دليل د امام اعظم رحمة الله عليه دادي چي لفظ د شهور چي جمع دى مراد ځندي نهايت د مطلق لفظ الجمع فى الشهور وهو عشرة اشهر، او ياران وايي چي په عرف كي مراد د شهور څخه مياشتي د كال دي چي دولس (١٢) دي كذا فى العنايه.

قال ﴿ولو حلف لا يفعل كذا تركه ابداً﴾ او كه چا سوګند وكړى چي دى به فلانى كار نه كوي، نو به هغه كار تر ابده نه كوي ولي د نفي لا چي په قسم كي راسي نو چونكه نفي په زمان دون الزمان سره مقيد نه دي، نو دده قسم هم مقيد په زمانه پوري نه دى نو د پاره د تابيد دي.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ولو حلف ليفعلن كذا ففعله مرة واحدة بر فى يمينه﴾ او كه چا قسم واخستى چي دى به فلانى كار كوي نو فقط يو وار يې هغه كار وكړى نو په قسم كي صادق سو يعني قسم خلاص سو ولي د اثبات د پاره يو وار كافي دى.

قال ﴿ولو حلف لاتخرج امرئته الا باذنه فاذن لها مرة واحدة فخرجت ورجعت ثم خرجت مرة اخرٰى بغير اذنه حنث ولا بد من الاذن فى كل خروج﴾ او كه يو چا لوړه وكړه چي زما ماينه به نه وزي د كوره څخه مګر زما په اجازه، نو ده يوه پلا اجازه وركړه او ماينه يي دده په اجازه د كوره څخه ووته او بيرته كور ته راغله، بيا وروسته هغه ماينه د

کوره ووته بېله اجازې د مېړه، نومېړه په قسم کي حانث سو، او چاره نسته بنځي لره د اجازې څخه د مېړه هر وخت چي د کوره وزي، دليل ددې مسئلې دادی چي د نحوي په کتابو کي وايي چي لفظ د باء چي حرف جر دی د پاره د الصاق دی يعني جوت والی نو گويا مېړه وويله چي د ماينې هر وتل د کوره څخه به جوت زما د اجازې سره وي، نو چي يو پلا بېله اجازې ووزي مېړه په قسم کي حانث سو.

مسئله:- که دمېړه په نيت کي په وخت کي د قسم يو وار اجازه وه، نو په نيز د خدای ﷻ دی په دوهم وار وتو کي د ماينې بېله اجازې حانث نه دی. لکن چونکه دا يو احتمال دده د قسم دی نو په قضاء کي د قاضي دی حانث دی، لکون الاحتمال المذکور خلاف الظاهر کذا فی الهدايه.

قال ﴿وان قال الا ان اذن لك فاذن لها مرة واحدة فخرجت ثم خرجت بعدها بغير اذنه لم يحنث﴾ او که مېړه داسي وويل چي الا اذن لك" نو مېړه خو يو وار د وتو اجازه ورکړه، او دا ووتل او بېرته راغله او بله پلا بېله اجازې ووتل نو دی په قسم کي نه دی حانث، ولي کلمه د باء الصاق مېړه نه راوړه بلکه اذن مطلق يې ووايه او هغه اذن مطلق خو حاصل سو نو قسم دده پای ته ورسېدی.

قال المصنف رحمه الله ﴿ولو حلف ان لا يتغدیٰ فالغداء هو الاكل من طلوع الفجر الی الظهر والعشاء من صلوٰة الظهر الی نصف الليل ولسحور من نصف الليل والی طلوع الفجر﴾ او که چا قسم واخستی چي زه به غدا نه کوم، نو دا غدا هغه خورك ته وايي چي د سپېدو د راختو څخه بيا تر ماپښينه پوري وي، او عشاء د ماپښين تر لمانځه

وروسته بيا تر نيمي شپي پوري وي او سحور د نيمي شپې څخه شروع کېږي بيا تر سپېدو پوري.

**فوائد**:- په عبارت کي د مصنف رحمه الله مجاز بالحذف دی يعني درې ځايه مضاف محذوف دی فی قوله فالغداء يعني اکل الغداء، وقوله العشاء ای اکل العشاء، وقوله السحور ای اکل السحور" وجه يې داده چي قسم چي سړی واخلي پر غداء يا پر عشاء يا پر سحور نو قسم خو د فعل د حالف دی، او غداء يا عشاء او يا سحور هغه طعام ته وايي چي په دغو اوقاتو کي خوړل کېږي او د حالف فعل نه دی بلکه د حالف فعل خو اکل د طعام دی په مذکوره اوقاتو کي، نهايه درويس.

**فائده**:- پوه سه:- چي غداء او عشا او سحور هغه طعام ته وايي چي عادتاً مړتيا ځندي مقصود وي، او د هر ځای او وطن په اصطلاح پوري اړه لري، هدايه.

**مسئله**:- نو که وطني سړي د غداء څخه قسم واخستی او بيا يې شيدې وچښلې نه حانثېږي ولي چي د وطني خلکو غداء شيدې نه دي، او که حالف د صحراء مالدار و نو د شيدو په چښلو سره حانثېږي لانه غداء فی حقهم، عنايه.

**فائده**:- په محيط کي وايي که چېري حالف ښاري سړی و نو مراد د غدا څخه خوراك ډوډۍ ده، لانه العرف فی الامصار، نو که ده خورما وخوړله او يا يې شيدې وچښلې حانث نه ګرځي، او که سړی د کلو او قريو سړی و بيا په خوړلو د خورما هم حانثېږي کذا فی البنايه.

**فائده**:- په عنايه کي وايي چي شرط د حنث دادی چي تر نيم نس به خواړه بالاخوري، او که يې يوه يادوې ګولۍ وخوړې نه حانثېږي.

**یوه مسئله**:- چي غداء، عشاء، او سحور د هر وطن په عرف پوري اړه لري.

**درويش وايي**:- چي دغه درې سره خو عربي دي په عربو پوري اړه لري، او پښتانه نه دغه الفاظ استعمالوي او نه يې په معنا پوهېږي بلکه که سړي قسم واخستی چي زه به صبا ناری نه کوم، نو هر وخت چي يې چائي چنبلې د چائي د ډوډۍ په خوړلو سره حانث دی، او که يې داسي قسم واخستی چي زه به د غرمې ډوډۍ نه خورم نو چونکه د غرمې ډوډۍ په پښتنو کي په مختفو اوقاتو کي خوړل کېږي بعض پښتانه يې د ماپښين تر لمانځه د مخه خوري او بعض يې وروسته تر لمانځه خوري، او داغه رنګه که چا لوړه وکړه چي زه به د ماښام ډوډۍ نه خورم، په هغه ډوډۍ کي هم د پښتنو رواجونه مختلف دي بعض پښتانه يې د ماخوستن تر لمانځه د مخه خوري او بعض يې وروسته خوري نو حالف د هر قسم چي و دده عرف ته اعتبار دی.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان حلف ليقضين دينه عن قريب فهو على مادون الشهر وان قال الى بعيد فهو اكثر من الشهر﴾ او که چا قسم واخستی چي زه به حتماً د فلاني پور تر نژدې زمانې پوري ورکوم نو هغه قسم پر کم تر مياشتي محمول دی يعني کې تر مياشت پوري يا بالاتر

میاشتي وځنډوی حانث دی، او که يې وویل چي زه به يې تر ډېري زمانې وروسته پور ورادا کوم نو هغه محمول پر بالا د میاشتي محمول دی.

**پوره تنبیه**:- چي په اول صورت کي بلکه په دوهم صورت کي هم حکم داغه مذکور دی چي د حالف په نیت کي پوره زمانه نه وي او که يې په نیت کي یو نیت معین و فهو علی ما نوٰي کذا فی الجوهره.

**فائده**:- په دوهم صورت کي حالف نه حانثېږي هر وخت چي پور ورکړی ولي چي بالاتر میاشتي خو پای نه لري، درویش.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن حلف لا يسكن هٰذه الدار فخرج منها بنفسه وترك فيها اهله ومتاعه حنث﴾ او که چا قسم واخستی چي دی به په دې سرای کي نه اوسېږي نو دی پخپله د هغه سرای څخه ووتی او کور والا او عیال او د کور سامان يې په هغه سرای کي پرېښول نو دی په قسم کي حانث دی، ولي سړی په عرف کي په هغه ځای کي او سېدونکی بلل کېږي چي دده اهل او عیال او متاع البیت اورې وي سره دډي چي سړی اکثره د ورځي په بازار کي تېروي، او که يې قسم د اوسېدو څخه د خپلي محلې اخستی و د هغه حکم هم دده د اوسېدو څخه د قسم اخستو په شان دی، کذا فی الهدیه.

قال المصنف رحمه الله ﴿ومن حلف ليصعدن السماء او ليقلبن هٰذا الحجر ذهبا انعقدت يمينه وحنث عقيبها﴾ او که چا قسم واخستی چي دی به اسمان ته خېژي، او یا به دغه ډبره سره زر ګرځوي قسم خو يې صحيح دی لکن دی حانث دی وروسته تر فراغ د قسم فی الحاله.

**پوښتنه**:- چي د قسم د صحت د پاره تصور د محلوف علیه شرط دی او امکان د هغه نوکه سړي داسي قسم واخستی چي زه به اجتماع د نقیضینو کوم او یا ارتفاع د نقیضینو کوم وغیر ذالك من الممتنعات بالذات دا قسم نه دی صحیح او نه پر سړی کفاره سته لعدم التصور والامکان، او په مانحن فیه ختل و اسمان ته خو متصور او ممکن بلکه واقع دی لکه په حدیثو مشهوره وو کي د بخاري بلکه په ټولو صحاحو سته وو کي بلکه د نورو صحیح کتابو د احادیثو ختل د آنحضرت ﷺ په لیلة المعراج کي وه آسمان بلکه وه اسمانو ته ثابت دی، او داغه رنګه ګرځول د ډبري سره زر په کرامت سره متصور او ممکنه ده، نو چي قسم صحیح سو او دغه کار د حالف د قدرت څخه وتلی دی نو ځکه فعلا دی حانث دی، او بل دلیل دادی چي غرض د حالف له قسم سره خو یو کار پر ځان واجبول دي او دا قانون دی چي ایجاب د بنده پر ایجاب د خدای ﷻ قیاس دی، خدای ﷻ پر بنده هغه شی واجبوي چي د بنده څخه یې تصور کېدلای سي او قدرت د بنده پر هغه کار شرط د ایجاب انتهٰی نه دی ځکه په هر شیخ فاني روژه فرض کړې ده که څه هم دی قدرت نه پر لري مګر تصور یې کېدلای سي تاچي شیخ فاني چي روژه نه سي نیولای عوض د روژې چې فدیه ده ورېې کړی، په قسم کي هم چي بنده پر ځان ایجاب د یو شی وکي او هغه کار یې په قدرت نه و پوره لکه په مانحن فیه کي، عوض ده هغه کار چي کفاره ده وردې کي، هذا فصل ما فی الهدایه وغیره من کتب الفقه.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ومن حلف ليقضين فلانا دينه اليوم فقضاه ثم وجد فلان بعضها زيوفا او بنهرجة او مستحقة لم يحنث الحالف﴾ او كه چا قسم واخستی چي زه به حتماً د فلاني سړی پور ورادا کوم ننه ورځ، نو يې په دغه ورځ پور ورادا کړی، ثم يعني وروسته چي دائن روپۍ تفصيلاً وکتلې بعض د روپو څخه زيوفي وې.

**پوهه نمبر**:- چي زيوفي هغه روپۍ بولي چي بيت المال يعني حکومت يې په بانګ کي نه اخلي او د تجارو تر منځ چلېږي، او يا بعض روپۍ بنهرجه وې.

**پوهه نمبر**:- چي بنهرجه هغه روپۍ دي چي نه يې بيت المال اخلي او نه يې تجاران، په سبب د کوټ چي په کښ وي، نو بنهرجه تر زيوفو خرابي روپۍ دي كذا فى البنايه بحذف وزيادة، او يا هغه روپۍ يو بل چا درك کړی او په شاهدانو يې د هغه دائن څخه يوورې، نو دغه حالف حانث نه دی، په هدايه کي وايي چي زيافت وغيره خو عيب دی، عيب خو جنس دشي نه نفي کوي نو شرط د بر يعني نه حانثوالي پيدا سو چي قضاء الدين و، يعني قضاء د دين حالف وکړه ولي که هغه دائن د زيافت وغيره ترعيب تېر سي او مديون ته چي حالف دی ووايي چي پروا نه لري زما دغه زيوفي وغيره قبولي دي پوره يې اداء کېږي، او د مستحقو روپو قبض خو صحيح دی نو شرط د بر پيدا سو کې څه هم وروسته مستحق و کتي او د دائن څخه يې يوسي، غايت ما فى الباب چي دائن په دري سره صورتو کي پر مديون حق د خپل پور لري يعني په زيافت وغيره سره نه وي راضي.

قال المصنف رحمه الله ﴿وان وجدها رصاصاً او ستوقة حنث﴾ او كه يې پيدا كړي يعني دائن بعض يا ټوله وركړه سوي روپۍ د مديون د خوا څخه د مسو روپۍ او يا ستو قه روپۍ،

**پوهنه**:- چي ستوقه لفظ فارسي دی مګر عربي ته رانقل سوی دی، هغه روپۍ ته وايي چي د ژړو وي لكن شا وخوا يې د سپينو زرو آب وركړی وي كذا في الطحطاوي على در المختار، نو په دواړو صورتو كي حالف حانث دی ولي دغه دواړه قسم روپۍ دراهم نه بولي او پور خو دراهم وو.

**فائده**:- چي دراهم د ضمائرو مؤنثه وو مرجع دی كه څه هم صراحةً مذكور نه دی لكن لفظ د دين دلالت پر كوي ولي چي متعارف پور د دراهمو پور دی نو د اضمار قبل الذكر المرجع سوال نه وارد يږي.

قال ﴿ومن حلف لا يقبض دينه درهما دون درهم فقبض بعضه لم يحنث حتى يقبضه جميعه متفرقاً﴾ او كه چا قسم واخستی چي زه به نه قبض كوم خپل پور يعني چي پر فلاني مي باندي دی درهم بېله بل درهمه يعني متفرق، نو ده بعض پور واخستی نه دی حانث تر هغو پوري چي ټوله پور متفرق وانه خلي ولي چي حالف په خپل قسم كي پور مضاف كړی وخان ته والاضافة للاستغراق،چي معهود نه وي كما تقرر في كتب النحو نو مراد دده ټوله پور دی نو څكه تر هغو چي ټوله پور متفرق وانه خلي حانث نه دی، قاله صاحب الهدايه.

قال ﴿ان قبض دينه في وزنين ولم يتشاغل بينها الا بعمل الوزن لم يحنث وليس ذالك بتفريق﴾ او كه په داغه صورت كي د

قسم حالف د پوره وري ځخه روبی د پور دوه واره په تلو واخستې، او که یې په بل کار سره ځان نه کی مشغوله بېله تللونه دی حانث یعني دې ته تفرق نه وايي ولي چي پور ډېر دراهم وي او په یوه پلا یې تلل گران وي، نو دغه تفرق د وزن د حلف ځخه مستثنی دی، هدایه وغیرها.

قال المصنف رحمة الله عليه ﴿ومن حلف لیاتین البقرة فلم یاتیها حتی مات حنث فی اخیر جزء حیاته﴾ او که چا قسم واخستی چي زه به حتماً گورم ته د غیو ورځم، نو دی گورم ته نه ورغلی او حتی چي مړ سو نو دی حانث گرځي په اخر جزء کي د ژوند ولي چي تر مخه د هغه بر ممکن دی.

**پښتو نسخه**:- چي د بقره ځخه مراد دلته د جنس دی لکن په ضمن کي د ډېرو افرادو چي گورم یې معنا ده، او ځوك چي د بقره د مونث لفظ ځخه ښځه غوا توهم کوي او د اتیانه ځخه یې ناوړه معنا اخلي ډېر خطاوتلي دي، او په بعض نسخو کي د قدروي پر ځای د لفظ د بقره، لفظ د قریة راغلی دی هغه ډېره زیبا نسخه ده او د چون و چرا ځخه خالي ده فافهم.

**د علامه عصر شيخ التفسير والحديث جامع المنقول و المعقول محمود الاقرآن فخر افغان حضرت مولانا محمد عبيدالله الايوبي القندهاري النقشبندي السليمانخيلي مدفيوضه العاليه ترجمه او لنډه تاريخچه او سوانځ عمري او د مخلصانو دپاره پېژندګلوي.**

دده نوم محمد عبيدالله دی او ابوالفضل يې کنيت دی او ايوبي يې تخلص دی په عقايدو کې سُني ماتريدي دی او په فروعو کې حنيفي مذهبه دی او په طريقت کې نقشبندي مجاز دی او په قوم سلېمانخېل دی او وطن يې کندهار دی.

او دی د عالم متقی الحاج محمدايوب زوی دی او ده د پنجشنبې په ورځ د ماسپښين تر لمانځه وروسته پر ۱۵ د ذی القعدة الحرام ۱۳۴۳ هجري قمري د فاشمول په قريه کې پر نابوده دنيا سترګې روښې کړې دي او پلار يې يو تقواداره عالم و او په طريقه نقشبنديه کې مجاز و.

او د شارح لـه خولې چي زما پلار زما پر تعليم زده کړې ډېر حريص و، حتی سره د ډېره صغر سنه يې زه پر سبق مجبور کړی وم. شارح وايي چي ځينې کتابونه د فقې شريفې او بعضي کتابونه د علم صرف او نحو ما پر مرحوم پلار وويله او بيا زما په زړه کې په برکت د دعا د والد مروحوم دا راسخ سو چي زه د وطنه او کوره ولاړ سم او په بې غمه زړه خپل تعلم او زده کړې ته دوام ورکړم الی ماشاء الله تعالی.

هغه و چي زه د کندهار وطن مالوف او د کور څخه د بلوچستان علاقې ته راغلم چي هغه زمين په هغه وخت کې د انګرېزانو تر تسلط او حکومت لاندي و، نو په بلوچستان پښين کې مې پر جيد متقي عالم مولوي تيمور

شاه صاحب مرحوم باندي بعضي كتابونه د حكمت او عقائدو ويل، الغرض دوه كاله مي دلته تېر كړه. د شارح د بيان سره سم بيا زه باعث كړم صدق همت پر دې باندي چي ولاړسم هند ته او په هند كي اجمير ته چي هلته علامة الزمان الاستاذ الكلية علماء الهند والافغان المولوي عبد الله الكندهاري المرحوم د مدرسه حنفيه صوفيه باني او سر پرست او مدرس اعلى و او دى مرحوم په دغه وخت كي معمر او كلان ساله عالم و، او ده ته د اطرافو څخه لكه افغانستان، بلوچستان، پېښور، ازاد قبائل او د هند د ډېرو لېرو سيمو څخه جيد جيد طالبان راتله او د درياب څخه د علم دده مبارك د استعداد سره برابر يې استفاده كول، او ده مبارك د طالبانو سره عموماً، او د پښتنو طالبانو سره خصوصاً ډېر شفقت كوى.

د شارح د خولې چي زه اجمير شريف ته ورغلم او د جناب مذكور په مدرسه كي داخل سوم پس له څو مدې تعلم څخه دده په جناب كي ماته يوه لويه منزله حاصله سوه" وذالك فضل الله يوتيه من يشاء

او شارح وايي چي ماپه خدمت كي د حضرت المرحوم درې كاله تېر كړه او ښه سليسه اردو ژبه مي هم زده كړه، او هلته ما كتب د تفاسيرو او رياضي او علم ادب او د متقدمينو د منطق بعض كتابونه لكه شرح المطالع او د حكماؤ متقدمينو بعض كتابونه لكه شرح الاشارات وغيره وويله .

پس له درې كاله انګليسانو د هند بر اعظم پر دوو برخو تقسيم كړى يعني پاكستان او هندوستان چي په دې سبب په منځ كي د مسلمانانو او هندوانو لويه فتنه او قتل و قتال منځ ته راغلى او اجمير شريف په حصه كي د هندوانو سو، نو هندوانو پر اقليت د مسلمانانو د اجمير شريف توره

د ظلم د تېکي وکېنل او په زرو مسلمانان یې په شهادت ورسول آخر حضرت الاستاذ المرحوم سره د خو پاته پښتنو طالبانو د پاکستان وهجرت ته مجبور سو، هغه و چي استاذ محترم بلوچستان د کوټي ښار ته راغلی چي هلته دده مرحوم د یوه شاګرد حضرت المولوي عبد الغفور صاحب مدرسه په نامه د مظهر العلوم په شالدره کي وه چي تر اوسه هم سته او په هغه مدرسه کي یې وخپل درس ته ادامه ورکړه.

شارح وایي چي ما لږ زمانه په دغه مدرسه کي تېر کړه او بیا مي د حضرت الاستاذ څخه اجازه واخسته او لاهور ته ولاړم چي په لاهور کي یو معمر عالم شیخ الحدیث والقرآن وسائر العلوم النقلیة والعقلیة مولانا مهرالله المرحوم په یوه مدرسه کي چي په اچهره کي چي د لاهور ښار ته نژدې ځای دی واقع وه شیخ الحدیث و، او زه هم په هغه مدرسه کي داخل سوم او د مرحوم د فیضه مستفیض سوم او د احادیثو کتابونه او بعضي د فقهي شریفي کتابونه او نور باقي مانده کتابونه مي پر دغه لوي استاذ المرحوم باندې وویله، او د دوو کالوڅخه وروسته د ټولو درسي کتابو څخه فارغه سوم او د تحصیل شهادت نامه د استاذ المرحوم له خوا راکړه سوه، او زما عمر په دې وخت کي تخمیناً پنځه ویشت (٢٥) کاله و، او بیا حضرت الاستاذ المرحوم ماته وظیفه د مدرس ثاني پخپله مدرسه کي وسپارله، یو کال چي مي درس وکړی حب الوطن والاقرباء مي د امن ګیر سو او په اجازه د استاذ المحترم د لاهوره څخه کندهار ته راغلم، اول درس مي یو کال د موسٰی خان په جامع مسجد کي چي په هرات دروازه کي دی وکړی، او بیا زنګي اباد ته ولاړم یو کال مي هلته درس وکړی او بیا سنځري ته راغلم چي د یوې جامع قریې نوم دی ښار ته نژدې دولسو (١٢)

کاله مي دلته درس ته ادامه ورکړه، او د سنځري د استوګني په وخت کي زه د شيخ کامل جامع الكمالات السيد الجيد الجواد مولاى عبد الغني المرحوم المشهور په بابك صاحب كدني مريد سوم او پس له يوه كاله جد جهد ماته د خلافت د طريقه نقشبنديه خرقه دده بابك المرحوم له خوا راكړه سوه، او ما د سنځري ځخه په سبب د بعض اقتصادي مشكلاتو خوش آب ته هجرت وكړى چي هغه هم د كندهار ښارته نژدې يو جامع قريه ده، او هلته مي پنځه كاله درس وكړى او بيا د خوشاب ځخه كندهار ته ولاړم، او د ملا علم اخند په كلي كي مي په يوه جامع مسجد كي درس شروع او ديارلس (۱۳) كاله مي هلته درس وكړى، پس له هغه انقلاب د حزب الخلق په كومك د روس د افغانستان پر پاكه خاوره مسلطه سو او د مسلمانانو بندي كول او وژل يې شروع كړه، او عمومي مسلمانانو ونژدې اسلامي مملكتو لكه پاكستان او ايران ته هجرت وكړى او بعض مسلمانان نورو مملكتو ته ولاړه خصوصاً هغه وخت چي روسان مستقيما په لويه پيمانه داخل سوه، او د مسلمانانو له خوا د حزب الخلق او د هغو د معاونانو يعني روسانو سره جهاد اعلان سو، نو په هم دغه وخت كي زه د خپله عياله سره نژدې اسلامي ملك پاكستان ته راغلم او په كوټه كي مي اقامت اختيار كړى زامنو مي مزدورى كولې او ما خپل درس ته په ډكه پيمانه جريان وركړى حتى چي په سوو طالبان به دورځي سبقانو ته راتله او په يوه كتاب به پنځوس شپېته تر سلو پوري شريكان وه .

او شارح وايي چي ما په فارغه وخت كي پر بعضي درسي كتابو حاشيي هم كولې چي هغه كتابونه او رسالې تر څلوېښتو اوس زياتي دي او اكثره

يې پر منظر عام موجود او مقبول دي، الا عند الحاسدين الذين هم للحق ناكبون.

ناشر الكتاب وايي چې شارح محترم همېشه د سياسي ډلو څخه بر كناره وو او دی، او بعضي حاسدان او جاهلان د تعصب قومي د لاري يا د تعصب علمي د لاري پر شارح محترم قسما قسم بهتانونه ويله او واي يې لكن بيا هم شارح محترم په هغو كي فكر نه واهه او دا آيت يې مد نظر و ﴿وتعز من تشاء وتذل من تشاء بيدك الخير﴾ د شارح د هجرت څخه اوس درويشت (۲۳) كاله كېږي، د حاسدانو حسد پر ده هيڅ تاثير نه دی كړی او نه يې عزت ور كم كړی دی او نه يې رزق وركم كړی دی حتى د كوټي په ښار كي پرته د استوګني تر سرايه خپل جامع مسجد هم جوړ كړی دی، داوه د حضرت شارح محترم مختصر حالات، والسلام.

محمد فضل الحق حقاني تلميذه

= اعلان - چون که قاري فضل الحق صاحب خوشنویس عزیز
په [illegible] د دی حصی (پښتو) [illegible] کړی ده او تصرف مالی یې هم پکښې کړی دی لهذا [illegible]
د دی حصی [illegible] حقوق [illegible] قاری صاحب مذکور ته [illegible] کړي [illegible] کتاب فروش حق
نه [illegible] البته په تجارتي [illegible] علاوه چې [illegible]
[illegible] «وما علینا الا البلاغ»
[illegible] حنفی نقشبندی کندهاری
[illegible]

# اعلان

چون که قاري فضل الحق صاحب خوش نويس عزيز په نوشته کي ددې حصې ډيره عرق ريزي کړې ده او مصرف مالي يې هم پکښي کړي دي لهذا درويش د دې حصې د طباعت او کتابت ټوله حقوق و قاري صاحب مذکور ته هبه کړي دي، هيڅ کتاب فروش ته حق د کتابت او طباعت د دې حصې نسته البته په تجارتي مراعات هرڅو عدده چي مطلوب وي د نامبرده د مکتبې څخه دي يې خريداري کوي، وما علينا الاالبلاغ.

**محمد عبيدالله نقشبندي کندهاري ايوبي غفرله الباري.**

## مهم زيرى

د مفسر العصر حضرت ايوبي مدظله العالى تفسير **تفسير ايوبي** پر پنځلسو (۱۵) جلدو مشتمل ډېر ژر به د علم تفسير تشنه ګانو ته وړاندي سي انشاء الله العزيز

النـاشر

مكتبة القراءت والتجويد
مكتبة القراءت والتجويد

# فهرست